دقرآن او احادیثو په رڼا کې

مکمل او مدلل

# داوداسه مسئلې


مؤلف

مولنا محمد رفعت (قاسمي)

پښتو ژباړه

ملا فضل الرحمن



خپروونکی

مکتبه رشیدیه سرکی روډ

کوټه

# دكتاب پيژندنه :-


| | |
|---|---|
| دكتاب نوم | **داوداسه مسئلې** |
| مؤلف | مولانامحمدرفعت (قاسمي) |
| پښتوژباړه | ملافضل الرحمن |
| همكار: | مفتي محمدابراهيم (خليل) |
| دكمپوزاودترجمې چارې | دنورالقرآن اداري دژباړې اوكمپوزخانګه |
| كمپوزر | حسن الله (ذهان) |
| تصحيح | دنورالقرآن اداري خادم ابوخالدمولوي عبدالاحد(مجروح) |
| ډيزائن اوسمون | ابوخالد |
| خپرونكى | رشيديه كتابخانه سركى روډ كوټه |
| چاپوونكى | محمدساجد |
| چاپ شمير | ۱۱۰۰ټوكه |
| چاپ كال | ۲۰۰۸ ميلادي دجولايي مياشت |
| چاپ ځاى | لاهور |

اللهم اختم لنابالخیروالسعادة والبشارة والایمان

دعاغوښتوونکي ابوخالد



بسم الله الرحمن الرحیم

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ

اي هغو کسانوچي ایمان موراوړی دی ځه وخت چي تاسو ولمانځه ته ولاړشی نوپریمنځی مخونه خپل

وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُوا بِرُؤُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ

او لاسونه خپل تر ړیړیو پوری اومسح وکړی پرسرو خپلو باندی اوپښوخپلو باندی تربجلکو پوری

وَإِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا وَإِنْ كُنْتُمْ مَرْضَى أَوْ عَلَى سَفَرٍ

اوکه چیری تاسودجنابت په حال کی یاست نوښه ځان پاک کړی اوکه چیری تاسوناروغ یاست یا په سفرکی

أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِنْكُمْ مِنَ الْغَائِطِ أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً

یاست اویاراشی یوله تاسونه له ځای دضرورت څخه یانژدیکت وکړئ له خپلومیرمنوسره پس بیااوبه

فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوا بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُمْ مِنْهُ

پیدانشی نوقصدوکړی دپاکی زمکی اومسح وکړی پرمخوخپلو اولاسونوخپلو له دغی پاکې زمکی

مَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُمْ مِنْ حَرَجٍ وَلَكِنْ يُرِيدُ لِيُطَهِّرَكُمْ وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهُ

اراده نه لري الله ج چي تنګي راولی پرتاسو لکن اراده لري چي تاسو ښه پاک کړي اوچي خپل نعمت

عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ط

پرتاسو پوره کړي ښا یي چي تاسوئي شکروباسئ

**دتفسیرخلاصه :**

ای هغوکسانو !چی ایمان موراوړی دی څه وخت چی تاسوولمانځه ته ولاړشي (دلمانځه کولوازاده وکړی په داسی حال کی چی تاسواودس نلری )نواودس وکړی مخونه خپل پریمنځی اولاسونه خپل پریمنځی ترړیړیوپوری اوپرخپلوسروباندی لاس تیرکړی اوخپلی پښې تر بجلکو پوری پریمنځی اوکه چیری پرتاسوغسل فرض شوی وی (له لمانځه څخه مخکی )ټول بدن پاک کړی اوکه تاسوناروغه یاست (داوبواستعمالول درته تاوان کوی )یادسفرپه حالت کی یاست (اوبه

نه پیداکیږی دغه حالت دعذربلل کیږی )یاکه چیری دناروغی
اوسفرعذرهم نه وی بلکه اودس یاغسل له بلی وجی څخه مات شی
هغه دارنګه چی بولی یاګندګی وکړی یاتاسودخپلومیرمنوسره نژدې
شی اوبیاپه دغه ټولوصورتوکی اوبه تاسونه کړی پیدایاتاسو داوبو
د استعمالولووخت نکړی پیدایاداوبوله استعمال څخه دناروغی له
کبله عاجزیاست نوپه دغه صورتوکی تاسوله پاکی زمکی څخه تیمم
ووهی یعنی پرپاکه خاوره لاسونه ووهی اوبیائي پرخپلومخونو او
لاسونوباندی تیرکړی .دالله تعالی له دغواحکامومقرر کولوڅخه په
تاسوتنګی راوستل نه ده (الله تعالی دانه غواړی چی پرتاسوتنګی
راولی ځکه چی خاص له ذکرشوواحکاموڅخه همدارنګه له
ټولواحکاموشرعیه ووڅخه اسانی رعایت اومصلحت ښکاره ده
لیکن الله جل جلاله داغواړی چی تاسوپاکي وکړی نوله دی کبله یي
دپاکی قاعدی اولاری مشروع کړی اوپریوخاص طریقه یي بس نکړی
چی پرته له هغه پاکی ممکنه نه وی دیبلګی په توګه که چیری یي
خاص اوبه پاکونکی ګرزولی وای نوچی اوبه نه وای پاکی به نه
حاصلیږی .

دبدن پاکی خاص په احکاموطهارت کی ده اودزړونوپاکی په
عباداتوکی ده نودغه پاکی دواړوته شاملیږی اوکه چیری دغه نه وای
نوهیڅ پاکی به نه حاصلیدای اوبل الله تعالی داغواړی چی پرتاسو
خپل نعمتونه پوره کړی.

**داوداسه فضیلتونه**



نبی کریم ﷺ وپاکی ته چی یوه حصه یي اودس دی نیم ایمان ویلی
دی (ترمذی شریف)دایمان دوی حصی دی اعتقاد اوعمل دعمل
لویه حصه چی لمونځ دی پرپاکی موقوفه دی نوځکه نیم ایمان یی
ورته ووایو

(۱)نبی ﷺ ویلی دی چی داودس په کولوسره الله جل جلاله صغیره
(کوچنی )ګناهونه معافوی اوپه آخرت کی لویي مرتبی ورکوی اوپه
اوداسه کولوسره بدن له ټولوګناهونوڅخه خلاصون پیداکوی. (بخاری
شریف)

(۲)په ځینی احادیثوکی راغلی دی چی دمخ په مینځلوسره هغه ګنا
هونه معافیږی چی په سترګوشوی وی اودلاس په مینځلوسره هغه
ګناهونه معافیږی کوم چی په لاس سره شوی وی اودپښوپه پریمنځلو
سره هغه ګناهونه معافیږی چی په پښوسره شوی وی یعنی داندامو په
مینځلوسره لکه څنګه چی خیری توئیږی همدارنګه ګناهونه هم
رژیږی تردی اندازی پوری چی سړی له اوداسه کولوڅخه وروسته
پاک له ګناهونوګرزی په حدیث شریف کی له خاص ذکرڅخه دلاس
سترګی اوپښی داګمان نه کیږی چی دنوروانداموګناهونه نه رژیږی
ځکه چی وروسته یي داوویل چی د اودس کولووروسته سړی له
ګناهونوڅخه پاک ګرزی .اوپه بل حدیث کی کی خاص دبدن لفظ
ذکرشوی دی چی پرټولوانداموئی اطلاق کیږی.

(۳)نبی کریم ﷺ وویل: چی کوم څوک په مسنونه طریقه سره اودس
وکړی او وروسته له اوداسه کلمه دشهادت ووایي نودغه سړی لپاره

دجنت اته دروازې خلاصيږي په کومه دروازه چې وغواړي ننوتلای شي.(مسلم)

(۴)په ځينواحاديثوکی راغلی دی چی نبی کريم ﷺ وويل چی دقيامت په ورځ به زه خپل امت پيژنم يوکس پوښتنه وکړه چی حضرت په دی لويه ټولۍ اومجمع کی به ته څنګه خپل امت وپيژنی ؟نبی کريم ﷺ وويل چی ددوی لپاره به يوه نښانه اوعلامه وی هغه داچی د اوداسه له کبله به ددوی مخونه لاسونه اوپښی ځلانده وی.

(۵)هغه څوک به دشيطان له شرڅخه په امان وی کوم چی هميشه په اوداسه سره ګرزی په احاديثوکی راغلی دی چی هروخت په اوداسه سره ګرزيدل پرته له کامل ايمان والا څخه بل نه دی (يعنی دهغه ايمان کامل دی چی تل په اوداسه ګرزی.

(۶)په اودس سره ومسجدته پرتللوباندی پرهرقدم يوه نيکی وزکول کيږی اويوه خطايي معافيږی.

(۷)کوم څوک چی په اوداسه سره په مسجدکښی ناست وی اودلمانځه انتظارکوی کوم وخت چی دلمانځه په انتظارکی تيريږی دغه هم په لمانځه کی شميرل کيږی.(علم الفقه مخ ۵۲لومړی ټوک بخاري شريف مخ ۲۵لومړی ټوک)

نبی کريم ﷺ وويل چی که تاسوددی وس لری چی تل په اوداسه وګرزی نوييي وکړی (هميښه په اوداسه ګرزيدل مستحب دی اوچاته چی مرګ داوداسه په حال کی راشی نودهغه مقام دشهيد دی (بهشتی زيورمخ ۹۲لومړی ټوک )نبی کريم ﷺ وويل چی په کومووختوکی نفس دانه خوښوی چی اودس وکړی نو په دغه وخت کی دنفس



پرخلاف باندی په اوداسه کولوسره ګناهونه توئيږی (ناخوښي کله دسستی له کبله اوکله دناجوړی له کبله څخه وی اوکله ديخ له وجی څخه وی دناخوښی په حالت کی په اوداسه کولوسره کوچنی ګونهونه معافيږی نبی کريم ﷺ هغه کسانوته وکتل چی اودسونه يي کړی ووخوپوندی ئی وچی پاتی وی نونبی کريم ﷺ وويل چی په جهنم کی ددی ډيرغټ عذاب دی (دهغه پوندی چی وچی پاتی شوی وی )دوچوالی له کبله په پوست کی سختی راځی خاص بيادغه وچوالی ديخ په وخت کی زياتيږی نوبايدسړی داندامو په مينځلوکی کوشش وکړی تردی اندازی چی ديوه ويښته په اندازه وچوالی هم پاتی نشی (رفعت قاسمی )

**داوداسه ګټی اوحکمتونه**

(۱)اودس انسان له ښکاره اوپټو(باطنی )ګناهونواودغفلت (نبی پروائی )په پريښودلوخبروی که لمونځ پرته له اوداسه رواوای نو انسان به همداسی په غفلت کی مست پاتی وای اولمونځ به ئی همدا سی په بی فروائی کولای اوپه لمانځه کی به په همداسی بی فروائی داخليدای په دنيوی بوختياوو اوفکرونوکی به ديونشيې انسان په ځيرداخليدی نوځکه دبی پروائی له دغی نشی څخه دبيداری کولو لپاره اودس مشروع شوترڅوانسان په ښه پاملرنه اوخبرتيادخدای جل جلاله په وړاندی ودريږی (۲)طبی مشاهده ياتجربه ده چی دانسان له دننی بدن څخه زهرجن موداد بدن نوروغړوته راځی اوهغه لاسونه مخ اوسراونوروانداموته راشی هم هلته تم شی اودبيلابيلوزهرجنو دانو اوګرمه کوپه ښه څرګنديږی اودبدن دغړوپه مينځلودهغه

ناولواوخرابو موادو مخه نیول کیږی یاخوپه بدن کی دننه دهغوجوش په اوبوسړیږی یاخوراوزی (۳)په تجربه اومشاهده ثابته ده چی دلاسونو اوپښوپه مینځلوسره اوپرسراومخ داوبواچول پرنفس باندی ډیراغیز کوی اوپه مهموغړوکی قوت اوبیداری پیداکوی بی پروائی خوب اوډیره بی هوښی په همدی کارسره لیری کیږی ددی تجربی تصدیق په ماهروډاکټرانوکیدای شی ځکه چی څوک بی هوښه وی یایي نس ناستی (اسهال )وی یادیوچارګ پری شوی وی هغه ته پریادوشوو غړوداوبواچولوورانديز کیږی همداوجه ده چی انسان ته امرشویدی چی دخپل نفس سستی بیکاری اوناولتوب داوداسه په وسیله لیری کړی ترڅودخدای جل جلاله په حضورکی ددریدووړشی ځکه خدای جل جلاله تل هوښیاراوبیداردی لاتاخذه سنة ولانوم (الله جل جلاله غفلت اوخوب نه نیسی )نوسست اوبی پروادهغه په حضورکی نه شی دریدای همداوجه ده چی دمستی اونشی په حالت کی لمونځ نه دی روا وکوم نشیی ته چی دیوظاهری باچاودربارته دتللواجازه نه ورکول کیږی نوچی یونشیي اوشرابی دنشی اوغفلت په حالت کی دکوم دنیاوی حاکم ودربارته په ورتلونه شی بریالئ کیدای نوکوم څوک چی دِنشی اوغفلت په څیرحالاتوکی ډوب وی هغه ته څنګه دیوستر واکمن (یعنی الله جل جلاله )دربارته دتللوشرف ترلاسه کیدای شی؟

(۴)کله چی دپاکی کیفیت په نفس کی ټینګ شی نودتل لپاره په هغه کی دنیکی نوریوه څانګه په هغه کی پاتی کیږی اودوحشت دتیاری برخه ضعیفه کیږی (۵)دګناهونو اوسستی له کبله چی کوم روحانی



نورخوشی دبدن له ټولوغړوڅخه تللی ووداودس کولوله کبله دوهم ځل هغوته رارسیږی همداروحانی نورپه قیامت کی داوداسه په غړوکی څرګندیږی رسول الله ﷺ ویلی دی دقیامت په ورځ چی کله زماامت راشی نودهغوی پرلاسونومخونواوپښوبه داوداسه په اثارونور اورڼا څرګنده شی ځکه نوکوم څوک چی په تاسوکی خپله روڼاډیره ولای شی ډیره یې کړی. (المصالح العقیلة مخ ۱۲اسرارشریعت حجة الله البالغه)

## داوداسه په وسیله کوم ګناهونه معافیږی ؟

عن عثمان رضي الله عنه [قال: قال رسول الله ﷺ من توضأ فاحسن الوضؤخرجت خطایاه من جسده حتی تخرج من تحت اظفاره] (مسلم)

عثمان رضی الله عنه ویلی دی: چی رسول الله ﷺ وویل چاچی اودس وکړی اوښه اودس یي وکړی نودهغه له بدن څخه ټول ګناهونه وزی آن چی ترنوکانولاندی ګناهونه ئی هم نه پاتی کیږی (تشریح یاوضاحت ) بدن اوروح ډیری نیژدی اړکی سره لری چی دهغوحتمی پایله داده چی پرکوم یوه یوحالت راځی دوهم په طبعی ډول ورڅخه اغیزمن کیږی لکه چی دنیکی اوبدی تړاوبی شکه له روح سره دی په نیکواعمالوپرروح دنورانیت اورڼااوپه بدواعمالوپرهغه دتاریکی اثرات لویږی خوپه حتمی ډول بدن هم ددغوشیانوله ښواوبدواغیزواغیزمن کیږی همداوجه ده چی اودس کومه یوه نیکی ده اودهغه تعلق یاتړاو اصلاله روح سره دی ددغه اوداسه په وسیله دبدوعملیو هغه تیاره اثارختمیوی کوم چی دروح په وسیله پربدن هم راځی په حدیث شریف کی دبڼوتربیخواونوکانولاندی الفاظ (په

اوداسه ګناهونه ختميږی)ددی خبری دليل دی چی ګناهونه يوازی روح نه ناپاکه کوی بلکه په بدن کی هم دروح داخيری دبدنی خيريوپه ځيرجمعه کيږی چی هغه اودس اوداډول نوری نيکی پريمنځی دالله جل جلاله قول دی[ان الحسنات يذهبن السيئات](بيشکه نيکی بدله منځه وړی (سورةهود)خولکه څرنګه چی موږ ګوروچی معمولی ګرز په لږ جاروکولواومنځلوسره پاکيږی خوکوم خيری چی ډيروی دهغو لپاره ګرول مښل صابون اونوورکول ضروری دی همداډول دګناهو نوبيلې بيلې درجې دی دسپکی درجې کوچنی ګناهونه وی خودشپی اوورځی دعبادتونو اوداسه لمانځه اونوروپه وسيله معافيږی خودلومړی درجی دګناهونو دپاکی لپاره داشيان بسنه نه کوی دهغودمنځلولپاره دتوبی استغفار پښيمانی اودشرمندګی دځو څاڅکواوښکوبهولواړتياده لکه چی اسلامی عالمانودقرآن اوسنت په رڼاکی همدا پريکړه کړی ده چی دمختلفونيکواعمالوپه کولوچی دکومو ګنا هو نودمعافی زيری ورکول کيږی له هغه څخه کوچنی ياصغيره ګونهونه مراددی اودلويوګناهونولپاره خدي جل جلاله ته توبه هم ضروری ده ځکه نوله نيکواعمالوسره سره توبه هم په کارده.

(الترغيب والترهيب مخ ۳۴۰ لومړی ټوک مظاهرحق مخ ۳۸لومړی ټوک)

**پاکی دمکروبووژونکی ده**

اسلام دژوندپه هره څانګه کی وپاکی ته لوی اهميت ورکړی دی ځکه چی پاکی دانسان دژونديوخاص جزدی نوځکه اسلام وانسان ته دهغوشيانودپاکوالی حکم کړی دی کوم چی دده له هغوسره زيات تعلق دی لکه مسجدمکتب لباس خواسلام چی دبدن اوجامی پاکولی



ته څومره قدرورکړی دی دنړی پوه مذهب کی هم نه دی ثابت شوی هم دغه وجه ده چی په شريعت کی ځای پرځای پرپاکی کولوباندی تأکيدشوی دی همدارنګه په قرآن اوحديث کی هم دپاکی تائيدشوی دی ددی وجه داده چی دانسان دژونداصل مقصددخداي جل جلاله بندګی اودهغه خبره منل دی دغه دواړه دانسان سره هغه وخت يوځای کيدای شی چی انسان روغ اوغښتلی وی که چيری دانسان بدن کمزوری وی اودی معذوروی بياشريعت پرهغه باندی اسانه اصول ايښی دی پاکی دجوتيارلپاره ډيره اړينه ده که چيری انسان خپلی جامی بدن خوراک دوسيدلوځای اودعبادت ځای پاک ونه ساتی نودی به دډول ډول ناروغيوسره مخامخ شی بی وسه اوډنګربه شی اودعبادت کولوتوان به نلری نوځکه اسلام داوداسه غسل دحاجت لری کولواداب اوله ناپاکيوڅخه دخپل ځان پاکولوحکمونه بيان کړی دی ددی لپاره چی دانسان خپل بدن اوروغتياپرخپل ځای پاته وی اوله بيکاره ناروغيوڅخه په امان وی دانسان بدن ديومشين په ډول باندی دی که چيری مشين له خرابوموادوڅخه نه شی پاک نومشين کارنه کوی همدارنګه دمسلسل کارکولواوخواری کښلوڅخه دانسان بدن خرابيږی يادبلی وجی څخه پربدن خرابی لګيږی که چيری دغه ناپاکی له بدن څخه پاک نشی نوله بدن څخه خراب بوی ولاړيږی اوبيلابيل مکروبونه په بدن کی پيداکيږی چی دهغه له کبله انسان دناروغيوسره مخ کيږی که چيری دخولی دپاکی خيال ونه ساتل شی نوله دی څخه دمعدی ځګراوغاړی همدارنګه نوری ناروغی پيداکيږی اوکه چيری انسان دغاښونودمينځلوخيال ونه ساتی نوبه

دغاښونودخراب رنګ اودنوروضررمنوناروغیوسره مخ شی که چیری پوزه دخرابوموادو او ریزش څخه پاکه نه شی نودذهن دکمزوری اودعقل دلوټیدوسبب ګرزی که چیری لاسونه اومخ نه ومینځل شی نودوړی پرپاته کیږی اودلاسونواومخ رنګ ته تاوان رسوی اوپه وینه کی خرابی راولی اوانسان دکوچنی دانوسره هروخت مخامخ کیږی غرض دادی چی دانسان لپاره دهغواندامومنځل ضروری دی پرکومو چی ګرزونه اودوړی پریوزی اوډیر استعمالیږی. (احکام طهارت مخ ۳۲)

**داوداسه پیژندنه**

په لغت کي داوداسه معنی هم پاکی ده خوپریوخاصه طریقه دشریعت په اصطلاح کی له اوداسه څخه مرادپرخاصواندامو باندی لکه لاس مخ اونورپه خاصه طریقه اوبه اچول دی. (کتاب الفقه مخ ۷۴لومړی ټوک)

**په څرنګه اوبوسره اودس اوغسل کیږی**

مسئله: له اسمان څخه اوریدلی اوبه (باران)واله نالی چینی څاه تالابونه اودریابونوپه اوبوسره اودس اوغسل کول روادی اوبه که خوږی وی اوکه تروي. (بهشتی زیورمخ ۵۸لومړی ټوک حواله شرح تنویر مخ ۱۹۲)

مسئله ددرختی یادپاڼوپه ښښتیزل شوی اوبواودس یاغسل کول نه دی رواهمدارنګه په هغه اوبوچی دهندوانی یاګنی څخه وتلی وی اودس کول یاغسل کول روانه دی.

مسئله: په کوماوبوکی چی یوشی ګډشی یاپه اوبوکی یوشی پوخ شی اولکه اوبه داډول شی چی اصطلاح کی وهغه ته اوبه نه ویل کیږی



بلکه هغه په بل نامه سره نامدارشی نوپه دی سره اودس اوغسل نه دی روا هغه لکه شربت ښوروا سرکه دګلاب خوله اوهمدارنګه نورشیان

مسئله: په کوماوبوکی چی پاک شی ولویږی اوبوپه خوندیارنګ یابوی کی یوڅه فرق راشی خوهغه شی په اوبوکی پوخ شوی نه وی اوداوبوپه نرم والی کی ئی هم فرق نه وی راوستلی لکه چی په روانواوبوکی رنګ ګډشی یازعفران ورسره ګډشی اودهغه لږ رنګ په اوبوکی ښکاره شی یاصابن کی ولویږی یاددغوپه څیربل شی وی په دغه ټولوصورتوکی غسل اواودس کول روادی.
(بهشتی زیورمخ ۵۸ لومړی ټوک حواله درمختارمخ ۱۸۲ لومړی ټوک کتاب الفقه مخ ۸۷ټوک لومړی)

مسئله: که چیري یوشی په اوبوکی واچول شی اوبیاداچولوسره په اوبوکی پوخ هم شی اوددی له کبله داوبورنګ خونداوبوی بدل شی نو په دغه اوبوسره اودس نه دی رواخوکه داسی شی په اوبوکی واچول شی اوپوخ شی چی پرهغه باندی څه خیره اوخرابی نه وی اودهغه په پخوالی سره اوبه خنډی هم نشی نوپه دغه اوبوسره اودس کول روادی ددی اوبومثال دمړی دغسل داوبوده چی دبیروپاڼی یي په کی پخ کړی وی خوکه چیری دغه پاڼی دومره زیاتی ورواچول شی چی ددی له کبله په اوبوکی خنډوالی راشی بیاپه دغه اوبوسره اودس یاغسل کول نه دی روا. (بهشتی زیورمخ ۵۹لومړی ټوک حواله فتاوی هندیه مخ ۱۳لومړی ټوک)

مسئله: که چیری دجامی رنګولولپاره له اوبوسره زعفران ګډ کړی په دغه اوبواودس نه دی روا. (منیه مخ ۳۳)

مسئله: که چیرې داوبوسره شیدې ګډې شي اوپه اوبوکې دشیدورنګ زیات شي نوپه دغه اوبوسره اودس کول نه دی روا اوکه چیرې شیدې لږ وي اوزیات رنګ ئې په اوبوکې نه وي راوړی بیاپه دغه اوبواودس روادی.

مسئله: که چیرې په ځنګله کې لږڅه اوبه وموندی شي ترهغوبه اودس په کوی تر څوچې ئې دمرداروېقین نه وي پرراغلی صرف په دغه شک چې دااوبه به نه وي حلالې اوبه نه مرداریږي که چیرې ددغه شک له کبله تیمم ووهي نوتیمم ئې نه دی صحیح. (بهشتي زيورمخ ۵۹لومړی توک)

مسئله: که چیرې په اوبوکې مرداری ولویده نوپه دغه اوبواودس اوغسل کول نه دي روا خومرداری لږوي که ډیره وي خوکه چیرې مرداری په داسې اوبوکې ولویده چې هغه روانې وي اورنګ خوند اوبوی نکړي وربدل اودس یاغسل په کولای شي خوکه چیرې درووانواوبورنګ خونداوبوی بدل کړي بیانه ده په روا بلکه اوبه مرداری دي کومې اوبه چې دوښودبلګواوپاڼوله کبله ودریدوته نژدې شي دغه اوبه دروانواوبوپه حکم کې بلل کیږي که څه هم ډیرې کرارې روانې وي. (بهشتي زيورمخ ۵۹لومړی توک بحواله البدايه مخ ۱۱)

مسئله: هغه حوض چې په اندازه دلسولاسواوږدوي اودلسولاسوپه اندازه پراخ وي اودومره اوبه په کښې وي چې په لپه کې له اوبوراپورته کولوسره زمکه نه معلومیږي دغه اوبه هم ده روانواوبوپه حکم کې بلل کیږي ودغه حوض ته لس په لس کې ویل کیږي که چیرې په دغه حوض کې مرداری ولویږي په دې سره اودس روادی خوکه



چیرې ئې رنګ خوندیابوی بدل شي نوپه دغه صورت کې مرداری بلل کیږي.

(بهشتي زيورمخ ۶۰ لومړی توک بحواله شرح تنويرمخ ۹۹ لومړی توک فتاوی دارالعلوم مخ ۱۷۲لومړی توک بحواله هدايه مخ ۴۱لومړی توک)

مسئله: دهغه حوض په اوبواودس کول کوم چې چت لرې روادہ که چیرې اوبه دحوض له بام بیلې وي بیاپه اتفاق دعالمانواودس په رواده اوکه چیرې اوبه له بام څخه بیلې نه وي بلکه اوبه دچت سره نښتې اواوبه نه ښوریدې نوپه دې کې اختلاف دی حضرت تهانوی رحمة الله علیه درواوالې فتوی ورکړې ده .(وګوری امدادالفتاوی مخ ۵۹لومړی توک)

اوځنې علماؤددې مخالف دي ځکه دارنګه تالاب جوړول نه دي پکار.

مسئله: په ریل ګاډې کې چې کوم دحاجت ځای دهغه دتالاواوبه پاکې دي اوپه هغه سره اودس کول اوڅښل روادی. (فتاوی محموديه مخ ۲۵توک دوهم)

مسئله: هغه حوض چې لس په لس کې وي پرکوم ځای چې داندام دمینځلواوبه ولویږي اوبیاله هغه ځای څخه دبل اندام دمینځلولپاره اوبه راپوته شي هیڅ پروانلري.

مسئله: که اوبه سوکه سوکه روانې وي نوډیرپه بیړه اودس مه کوئ ترڅولویدلې اوبه بیرته په لاس رانشي. (منيه مخ ۳۶)

مسئله: که چیرې یوکافریاکوچنی په اوبوکې لاس ووهي دغه اوبه پاکې دي خوکه چیرې دامعلومه شي چې پرلاس یې مرداری نښتې وه بیااوبه مرداری ګرزي لیکن په کوچنی هلکانوهیڅ باورنشته نوځکه

بنه داده چې په هغواوبوسره اودس ونه شي په کوموکې چې کوچنې لاس وهلی دی ترڅوچې نوري اوبه نوی پیداشوی.

مسئله:هغه ژوندی شیان چې بهونکې وینه نه لری که چیری په اوبوکې یوله دغوشیانوڅخه مړشی یامړپه اوبوکې ولویږی اوبه نه خرابه وی یعنی اوبه مرداری نه ګرزي هغه شیان لکه /غماشی، لړم، مچمچی، غالبوزه اوداسی نور...

مسئله:هغه اوبه چې په ټانکۍ کې دلمرله کبله ګرمې شوی وی دغه اوبه په هغواوبوکې نه شمېرل کیږی کوم چې په لمرګرمې شوی وی نوپه دغه اوبوسره اودس پروانلري.

مسئله:دلمرپه ګرموشوواوبواودس اوغسل کول نه دی په کارځکه چې دفیس ناروغی سبب ګرزي یعنی دطب په لحاظ په هغواوبوسره اودس کول چې په لمرګرمې شوی وی نه دی پکارپه دی اوبوکې دثواب اوګناه خبره نشته بلکه په طبی لحاظ ئی استعمال بنه نه دی.
(بهشتی زیورمخ ۶۱لومړی ټوک بحواله شامی مخ ۱۸۲لومړی ټوک)

مسئله:ددریاب اوبه پاکې دی دحیوانانوپه څښلواوهمدارنګه په نوروشیانونه مرداریږی. (آپ کی مسائل مخ ۴۵ټوک دوهم)

مسئله:پرناپاکه ځای اودس کول بنه نه دی. (علم الفقه مخ ۸۳لومړی ټوک)

مسئله:دنلانوپه ذریعه چې کومه بدبویه اوپه راځی اوبیاوروسته ورپسی پاکې اوبه راځی نوترڅوپری چې دبدبویه اوبوحقیقت نه وی معلوم شوی یاله رنګ اوبوي څخه ئی ناپاکی نه وی بنکاره شوی نرهغوپوری دمرداروالوبوحکم نه پرکول کیږی ځکه چې بدبویه اوبه یېل شی دی اوناپاکه اوبه بیل شی دی که چیری پلټنه وشی چې دااوبه



دګټرپه اوبوګډوډی شوی دی نودنل له خلاصولووروسته دروانو اوبو حکم پرکیږی اوپاکې ګرزي.

مسئله: که چیری په تالاؤکې مرغی (چوغکه )ولویږی مړه شي اوبیاپه اوبوکې وپړسیږي نوپه دی کې دوه قوله دی لومړی قول دادی چې که دغه مرغی پړسیدلی وه نودغه ددرو ورځوبلل کیږی اوددرو ورځولمنځونه به راګرزوی دوهم قول دادی واوبوته هغه وخت دمردار والی حکم ورکول کیږی څه وخت چې ددی په لویدلوخبرشی په لومړی صورت کې احتیاط اوپه دوهم صورت کې اسانی ده.
(آپ کی مسائل مخ ۴۷ټوک دوهم)

مسئله:په څاه کې هغه دوااچول چې په هغه سره چنجان مړه کیږی څاه ناپاکه نه ګرزي اواوبه پاکې دی. (فتاوی دارالعلوم مخ ۲۲۷لومړی ټوک بحواله عالمګیری مخ ۲۰وفتاوی محمودیه مخ ۴۸ټوک نهم)

مسئله:دسائنس په ذریعه سره چې کومې خرابې دنالیانواوبه پاکې اورنې ګرزي دغه اوبه پاکې نه بلل کیږی دصفااوپاک په منځ کې ډیرفرق شته. (آپ کی مسائل مخ۶ ۲۴ټوک دوهم)

مسئله:دبدچلاوه میرمنې جوړکړی څاه څخه اودس کول اوغسل روا دی. (فتاوی دارالعلوم مخ ۲۱۹لومړی ټوک دغینه مخ ۸۶په حواله)

مسئله:کوم څهان چې په حرام مال سره جوړشوی ددغه څهانوپه اوبواودس کول روادی. (فتاوی دارالعلوم مخ ۱۹۷لومړی ټوک)

مسئله:که په څاه کې ګین ولویږی ترڅوچې ئی دایقین نه وی شوی چې ګین مرداردی اومرداری پرنبنتی وه څاه نه مرداریږی اوکه یي

داشک وی چی پرګین به مرداری نبنتی وی په دغه شک سره پراوباندی دمرداروالی حکم نه کیږی. (فتاوی دارالعلوم مخ ۲۰۴ لومړی ټوک)

مسئله: هغه اوبه چی دهغه خوندرنګ اوبوی بدل شوی وی ددغه اوبو استعمال په یوه طریقه سره هم نه دی روا همدارنګه دغه اوبه حیوانانو ته ورکول یاخاوری په خشتول هم نه دی روا اوکه یی دری اوصاف نه وو بدل شوی بیایي وحیوانانوته ورکولای شی همدارنګه اوګیره په خشتولای شی دواړه روادی چی ختی په وکړی همدارنګه په دغواوبو سره ځای هم پاشی کولای شی خوددارنګه اوبوپه تیاروشوو ختو مسجدبایدنه شی ګل. (بهشتی زیور مخ ۶ لومړی ټوک حواله عالمګیری مخ ۲۴ لومړی ټوک)

مسئله: هغه دریاب واله اوتالاب چی دچاپه زمکه کی نه وی اووقف شوی وی نوددی ټولواوبوڅخه فائده اخستل روادی وهیچاته داحق نشته چی ددی داستعمالولوڅخه څوک بندکړی یاددی په استعمال کی دارنګه طریقه اختیارکړی چی عاموخلګوته تاوان رسیږی.

مسئله :که دسړی په خپله مملوکه مځکه کی داوبوڅاه یاچینه یاحوض یاواله وی نودغه سړی چی دمځکی مالک دی نورخلګ ددغه اوبوڅخه منع کولای شی. (تنویرالابصارمخ ۲۵۷)

مسئله: هغه اوبه چی دګرمی په موسم کی دخلګودڅښلو لپاره ایښوول شوی وی اودس نه دی په رواخوکه اوبه زیاتی وی بیایي استعمال هیڅ پروانلری اوهغه اوبه چی داوداسه لپاره ایښودل شوی وی دهغه اوبوڅښل روادی. (بهشتی زیور مخ ۷ لومړی ټوک بحواله درمختار مخ ۴ لومړی ټوک)



مسئله: دپاکواوبوداستعمالولوزیات حقدارهغه څوک دی چی غسل پرفرض وی شوی وی اودغه کس ته پرحائضه ښځه بی اودسه سړی اودمړی پرغسل ترجح ورکول کیږی ددی وجی دادی چی جنابت (ناپاکی) ډیره لویه ناپاکی ده اومهم دی نوددی لری کول هم ډیراړن اومهم دی که پاکی اوبه له دغه دروڅخه دیوه په ملکیت کی وی بیاداوبوپه استعمالولوخاونداوبوحقداردی خودهرشی ضرورت چی ئی وی دبیلګی په توګه جنوب حائضه ښځه اوبی اودسه دری کسان دی اواوبه په دوی کی خاص دیوه دی نوداوبومالک زیات حقداره دی په استعمالولوددغه اوبوسره اوکه اوبه ددغودرو کسانو په منځ کی شریکی وی بیانبه داده چی دغه مشترکی اوبه دمړی د غسل لپاره وصرف شی. (کشف الاسرارمخ ۲۵ ټوک دوهم)

مسئله: دښځی له اوداسه یاغسل څخه چی کومی اوبه پاته شی و نارینه ته نه دی پکارچی په هغه پاته اوبواودس یاغسل وکړی (داهغه وخت چی دشهوت اوبدخیالوویره وی) نوګواکي زموږ په مذهب په دغه ډول اوبواودس یاغسل کول دنارینه لپاره روا دي.
(بهشتی زیورمخ ۱۰ ټوک یوولسم بحواله درمختارمخ ۲۴)

مسئله: له اوداسه څخه په پاته شوو اوبواستنجاوهل اوله استنجاڅخه په پاته اوبواودس کول روادی. (فتاوی دارالعلوم مخ ۱۷۵ ج ۱ اغلاط العوام مخ ۳۹)

مسئله: پرکوموځایوچی دخدای جل جلاله عذاب پرپیوقوم نازیل شوی وی لکه قوم ثموداوقوم عاددغه ځایوپه اوبوسره اودس

اوغسل نه دی پکاردمجبوری په وخت کی ددغه اوبوحکم دزمزم داوبوپه شان دی. (بهشتی زیورمخ ۱۰توک یوولسم بحواله درمختارمخ ۴۵)

مسئله دشیعه گانومیزائیانو اودنوروکفاروله کوروڅخه داوداسه لپاره اوبه راوړل اوهغه سره اودس کول روادی لیکن دهغودکورو غوښی خوړل حرام دی له غوښوڅخه پرته نورشیان یي خوړل پروانلری. (احسن الفتاوی مخ ۴۶دوهم توک)

مسئله:که بی لمانځه یابدعت کونکی سړی بل ته داوداسه لپاره اوبه ورکړی په دغه اوبواودس کول صحیح دی اوداودس کونکي په لمانځه کی هیڅ خرابی نه راځی.(فتاوی دارالعلوم مخ ۱۷۶لومړی توک بحواله درمختارمخ ۱۴۶لومړی توک)

مسئله:دحکومتی والی څخه داوداسه یاغسل لپاره اوبه راوړل پروا نلری. (فتاوی دارالعلوم مخ ۱۷۷ لومړی توک)

مسئله: دمشرکینواودکفارودڅښلوڅخه چی کومی اوبه پاتی شی (په شرط چی شراب به ئی نه وی څښلی )په دغه اوبواودس اوغسل روادی. (فتاوی دارالعلوم مخ ۳۵۱لومړی توک بحواله ردالمحتارباب فی السور مخ ۲۰۵لومړی توک)

مسئله:بیلریاډبه په سپین رنگ وهلوسره څه موده ددوی په اوبوکی بوی اوپه خوندکی یي هم فرق راځی ددغه اوبواستعمال دغسل اواودس لپاره روادی ددغه اوبواستعمال هغه وخت روادی چی دغه رنگ په داسی برش سره نوی شوی چی هغه دخنزیرپه ویښتانوجوړ شوی وی نوپه دغه اوبوسره اودس کول روادی که څه هم په اوبوکی درنگ بوی اوخوندپاتی وی (احسن الفتاوی مخ ۴۴توک دوهم) که



لاس ناپاکه وي اواودس پرته له ذی چی لاس په اوبوکی نه ووهی یعنی په اوبوکی نه واچوی اودس ممکن نه دی دارنگه سړی نه وی چی دهغه لاس پاک وی اواوبه راوکاږی اونه دارنگه ټوټه رسی وی چی دهغه په ذریعه اوبه راواخلی اولاس په ومینځی نوپه دغه وخت کی اودس کول پکارنه دی. (علم اصول الفقه مخ ۸۳لومړی توک)

**دلمرپه گرموشواوبواودس کول**

مسئله:دلمرپه ذریعه دگرموشوو اوبوپه کراهت کی داحنافو اختلاف دی صحیح خبره داده چی دغه اوبه مکروه تنزهی دی اودغه مکروه والی په اوبوکی هغه وخت پیداکیږی چی علاقه گرمه وی اوموسم هم گرم وی اوبل داچی دسرواوسپینوزروڅخه پرته په بل لوښی کي وی اوپه داسی وخت کی استعمال شی چی دهغوگرموالی نه وی ختم شوی (احسن الفتاوی مخ ۴۴ ټوک دوهم بحواله ر دالمحتارمخ ۱۶۷لومړی ټوک)

مسئله:داوداسه کولوپه وخت کی یاداوداسه کولووروسته که د او داسه اوبه (چی استعمال شوی وی )پربدن یاپرجامی اونورو ونښتی نودمفتی به قول سره سم په دغو اوبوسره نه بدن ناپاکه کیږی اونه جامی ناپاکه کیږی. (فتاوی محمودیه مخ۴۵ټوک نهم بحواله بحرمخ ۹۸لومړی توک)

**دزمزم په اوبواودس اوغسل کول ؟**

کوم څوک چی پاک وی اواودس لری که یي خاص دبرکت دحاصلیدو لپاره دزمزم په اوبواودس یاغسل وکړی روادی خوبی اودسه انسان یاهغه انسان چی غسل پرفرض شوی وی دهغه لپاره دزمزم په اوبوسره اودس یاغسل کول مکروه دی همدارنگه هغه جامی چی مرداری پری

لګیدلی وی دزمزم په اوبوسره یی مینځل مکروه دی اوهمدغه حکم
دی دزمزم په اوبوسره داستنجاوهلوغرض دادی چی دزمزم اوبه ډیری
دبرکت اوبه دی ادب اواحترام یي کول ضروری دی ددغه اوبوڅښل
سبب دبرکت ګرزی خودمرداری دلری کولولپاره ددوی استعمال
روانه دی. (آپ کی مسائل مخ ۳۰ټوک دوهم)

مسئله: هو :که مجبوری وه چی تریوه میل وړاندی اوبه نه پیداکیدی
اوضروری پاکی په ډول کوم بل هم نه شوای حاصلیدای نوبیاداټول
کارونه دزمزم په اوبوروادی. (بهشتی زیورمخ ۱۰ټوک ۱بحواله کبیری مخ ۶۱۸)

مسئله: دجنابت غسل دسخت ضرورت له کبله دزمزم په اوبوروادی.
(فتاوی رحیمیه مخ ۲۲۳ټوک ۵بحواله درمختارمخ ۳۵۲توک لومړی )

**دباران اوروانواوبوسره اودس اوغسل کول ؟**

مسئله: که یوسړی په روانواوبوکښی یاپه لوی حوض کی یادباران
اوبوته دومره وخت ودریږی څومره چی دغسل په کولوکی تیریږی
نودغه سړی دغسل سنتونه پوره کړل یعنی دغسل سنتونه خپله پوره
کیږی (داهغه وخت چی دغسل اواودس نیت یي کړی وی)روانی اوبه
یادباران اوبه په واروارپربدن لګیدلواوتللوسره ددرو۳ واروبهیدلو
پرځای دریږی همدغه وجه ده چی علماؤویلی دی چی دلوی حوض
څخه جاری یعنی روانی اوبه مراددی دریدلی اوبه اوهغه اوبه چی
یوچادرولی وی په دغه حکم کښی نه دی که څه هم زیاتی وی
اوځینوویلی دی چی په درول شوو(پاکو)اوبوکی له یوځای څخه وبل
ځای ته دنقل کیدوپه وجه سنت پوره کیږی بلکه دلمبیدونکی
ښوریدل هم کافی ده علامه ابن حجرلیکلی دی چی په درول شوو



پاکواوبوکی ټوله بدن درواره ښورول کافی دی که څه هم پښی له یوه
ځای څخه بل ځای ته نقل نشی ځکه چی هرځل په ښوریدوسره نوی
اوبه له بدن سره مښلی. (کشف الاسرارمخ ۲۷لومړی ټوک )

مسئله: په غسل کی دبدن دیوی حصی اوبه دبدن بلی حصی ته وړل په
دی شرط روادی چی دغه اوبه ورروالوزی لیکن دغه دیوه اندام اوبه
دبل اندام په ذریعه وړل په اوداسه کی روانه دی ددی وجه داده چی په
غسل کی ټول بدن دیوه اندام په حکم کښي دی خواودس داسی نه دی
ځکه په اوداسه کی هراندام بیل بیل شمارل کیږی (کشف الاسرارمخ
۳۰لومړی ټوک )مطلب دادی چی په اوداسه کی یواندام چی په
کوموا وبوسره ومینځل شی په هغه اوبوسره بل اندام نه مینځل کیږی
بلکه ددغه بل اندام لپاره دنوروا وبورااخستل پکاردی لیکن په غسل
کی ټوله بدن دیوه اندام په حکم کښی دی نوځکه دیوه اندام اوبه وبل
ته وړل هیڅ پروانلری خوداشرط ضروری دی چی اوبه دومره وی چی
هغه له دغه اندام څخه ولاړی شی دهغه بل سره ونښلی ددی لپاره چی
پردغه حکمادمینځلوحکم یااطلاق وشی.

محمدرفعت قاسمی
غفرله

مسئله: داوداسه اودغسل داوبواندازه یوه کاسه راغلی ده دائی
خاص اندازه نه ده ځکه چی له دغه څخه زیاتوالی اوکموالی روادی
اواسراف کول روانه دی بلکه مکروه دی.
(فتاوی دارالعلوم مخ ۱۲۹لومړی ټوک مخ ۱۳۳ لومړی ټوک مشکوة مخ ۴۸لومړی ټوک ) په
حدیث شریف کی چی داوداسه اوغسل لپاره داوبوکومه اندازه ښودل
شوی ده واجبه نه ده بلکه سنت ده چی ددغه اندازی څخه به اوبه کمی

نه وی (داوداسه لپاره اندازه يو کيلواوبه اودغسل لپاره څلوريا پنځه کيلواوبه )که ديوسړی اودس ياغسل دذکرشوی اندازی څخه په کمواوبوسره کيدی ياداندازی څخه په زياتوکيدی نوپه حديث کی دذکرشوی اندازی څخه په زياتواوبوغسل او اودس رواکيږی.
(مظاهرحق مخ ۴۱۴ لومړی ټوک اومخ ۴۰۶ لومړی ټوک فتاوی رشيديه مخ ۲۸۴ لومړی ټوک)

**له کوم حوض څخه چی اودس روادی دهغه اندازه**

مسئله: دمتأخرينوفقهاؤدفتوی مطابق دحوض اوږدوالی اوپراخوالی لس ګزه ضروری ده اودژوروالی زياتوب هيڅ فائده نلری ژوروالی چی هرڅومره زيات ياکم وی اعتبارنلری خواوږدوالی اوپراخوالی لس ګزه ضروری دی دشرعی ګزاندازه دمروجوبزازانوڅخه ليدل شوی ده تقريبا لس لس نيم چی ددوو فټوواندازی ته نژدی ده يالږڅه کم تردوو فټو. (فتاوی دارالعلوم مخ ۱۹۳ لومړی ټوک بحواله درمختارمح ۱۷۷ لومړی ټوک باب المياه فتاوی دارالعلوم مخ ۱۸۸ لومړی ټوک)
شرعی ګز ۴۶ اشاری ۲ سانتی متره يعنی اتلس نيم انچه کيږی.

مسئله: دحوض اوږدوالی اوپراخوالی برابريدل ضروری نه دی د زياتوب اوکمبود پراخی کښی شته لکه څنګه چی لس لاسه اوږد او لس لاسه پراخ شرعی حوض دی همدارنګه پنځه لاس پراخ اوشل لاسه اوږدياڅلورلاس پراخ ۲۵ لاسه اوږداودوه لاسه پراخ ۵۰ لاسه اوږدهم شرعی حوض بلل کيږی که حوض ګردی وی نودهغه ګردی والی به ۳۶ ګزه وی(اوپه قول دصاحب محيط احتياط دادی چی ۴۸ ګزه به وی ) که حوض مثلث يعنی دری کونجه وی نوهرلوربه يي ۱۵ نيم ګزه وی



اوژوروالی به ئی دومره وی چی اوبه په لپه څنی راواخستل شی زمکه نه ښکاره کيږی.
(فتاوی رحيميه مخ ۲۵۵ ټوک څلورم بحواله طحطاوی علی المراقی الفلاح مخ ۱۷ وشامی مخ ۷۸ ا لومړی ټوک)

مسئله: که په حوض کی يوحيوان ولويدی مړشواووشوړيدی که دهغه دشوړيدوله کبله داوبورنګ يابوی ياخوندبدل شونودحوض اوبه ناپاکه دی اوکه له دغه درواوصافوڅخه يوهم نه وو بدل شوی نوکه دحوض اوبه ډيری دی بيااوبه ناپاکه نه دی اوکه داوبورنګ يانورڅه بدل شی نواوبه ناپاکه دی اوپه دغه اوبواودس غسل اواستنجاروانه ده اوکه وکول شی نوپاکی پری نه راځی اوکه يي په دغه ناپاکواوبو دا ستنجاوهلووروسته (خواپه دغه استنجاووهی اوبه ورته معلومی وی يانه وی)اودس وکړی اولمونځ وکوی نولمونځ يي نه صحيح کيږی دد غه راګرزول فرض دی. (رحيميه مخ ۲۷۸ ټوک څلورم دحوض تفصيل وګوری شامی مخ ۱۲۰ شرح تنويرالابصار)

**دناپاکی په وخت کی داوداسه کولوڅه ګټه ده ؟**

پوښتنه: دجنابت له غسل څخه مخکی لومړی داوداسه څه ګټه ده ؟ ايا له ناپاکی لری کولوپرته اودس کيدای شی ؟دصحابه کرامو دا عادت جوړشوی ووچی له خپلو ښځو سره ترنيژديکت وروسته به ئی اودس وکړاوييده به شوپه دغه ناپاکی کښی اودس څنګه دی؟په ذهن کی می نه راځی.
ځواب :دجنابت په حالت کی په اوداسه کولوسره پاکی نه حاصليږی مګرپه ناپاکی کښی لږسپکوالی راځي که ديوشرعی حکم حکمت په ذهن کښی نشی رانوڅه تاوان دی

مسئله: که په شپه کی له کومی وجی دغسل اړتیاشوه اوپه دغه وخت کی په غسل کولوکښی تکلیف وی نوښه داده چی غسل وکړی لیکن که غسل نه وکړی نو استنجااو اودس دی وکړی بیده دی شی دغه مسنونه اوغوره شوی طریقه ده (الجواب متین مخ ۱۰)

مسئله: په شپه کښی دبیدیدوپه وخت کی اودس کول( یعنی سره داوداسه بیدیدل )ښه کاردی. (آپ کی مسائل مخ۳۶ټوک دوهم)

مسئله: دناروغه دپښتنی لپاره په اوداسه تلل سنت دی مظاهرحق مخ ۳۵۳لومړی ټوک)ددی وجه داهم کیدای شی چی دناروغ پوښتنه عبادت دی اوداښکاره خبره ده چی عبادت په اوداسه سره ښه اوکامل ګرزی. محمدرفعت قاسمی غفرله

**ایاکامل اودس ضروری دی کله چی درکعت دتیریدوویره وی ؟**

مسئله: که جماعت ولاړ وی هم بایدی کامل اودس وکړل شی داوداسه سنتونه پوره کول اړین دی که څه هم جماعت ختم شی. (فتاوی دارالعلوم مخ ۱۳۱لومړی ټوک بحواله مرقات مخ ۱۲۱لومړی ټوک)

مسئله: په یوه لاس اودس کول صحیح دی خودسنتوخلاف دی پرته له ضرورته داسی کول نه دی پکار.(فتاوی دارالعلوم مخ ۱۳۲لومړی ټوک)

**دمجبوری له امله خوله نه مینځل ؟**

پوښتنه :که یوسړی خوله مینځی نووینه کوی څه وخت وروسته وینه بندوی څرنګه چی دخولی په مینځلوکښی داودس دماتیدوویره وی له دغه وجی که خوله نه مینځی اولمونځ وکړی صحیح ده کنه ؟

ځواب : په داسی وخت کی خوله نه مینځل صحیح ده بی له خولی مینځلولمونځ صحیح ده.



(فتاوی دارالعلوم مخ ۱۲۹لومړی ټوک بحواله ر دالمحتارمخ ۱۴۵لومړی ټوک کتاب الطهارت سنن الغسل)

**پریوه اوداسه سربیره بل اودس کول ؟**

مسئله:که یوسړی دماښپین دلمانځه لپاره اودس وکړاواودس یې نه وی مات شوی نودراتلونکی وخت دلمانځه لپاره نوی اودس کول واجب نه دی (هم په دغه اودس سره لمونځ کولای شی ترڅوچی اودس نه وی مات شوی. (کتاب الفقه مخ ۸۱لومړی ټوک)

مسئله: که پراوداسه بل اودس وکړی ډیرثواب ورکول کیږی. (بهشتی زیورمخ ۴۸لومړی ټوک کبیری مخ۳۶آپ کی مسائل مخ ۳۱ټوک دوهم)

مسئله: داوداسه په منځ کی داوداسه ضدشی واقع شویعنی داوداسه دکولوپه وخت داوداسه ماتونکی شی راغلی دمثال په توګه لاسونه اومخ ئی مینځلی دی اودس ئی مات شونودوهم ځل اودس شروع کول لازمی دی لیکن دعذر حالت له دغه څخه بیل دی. (کتاب الفقه مخ ۸۱لومړی ټوک فتاوی دارالعلوم مخ ۱۴۱لومړی ټوک بحواله ردالمحتارمخ ۷۹لومړی ټوک)

**دمسجدپرفرش باندی اودس کول**

مسئله:په مسجدکی چی پرکوم ځای لمونځ کیږی (یعنی کوم ځای چی دلمانځه کولولپاره معلوم شوی وی )هلته اودس کول صحیح نه دی خوکه داسی اودس وکړی چی اوبه ومسجدته نه شی داخلی بیاروا ده (علم الفقه مخ ۸۳لومړی ټوک)

مسئله دمسجدپرفرش باندی چی دلمانځه لپاره متعین شوی وی اودس کول روانه ده که ځای داوداسه لپاره جوړشوی وی نوهلته دی اودس وکړل شی که نه وی دمسجدله فرش څخه دی لری شی اودس دی وکړی مقصدداچی داوداسه مستعمل شوی اوبه دمسجدپرفرش

اچول منع دی. (فتاوی محمودیه مخ ۱۳۷ توک لسم بحواله شامی مخ ۱۳۳ توک دوهم باب الاعتکاف)

مسئله: دمسجد داوداسه ځای اوبه د اوداسه لپاره خاص شوی دی ددغه اوبوړل روانه دی خوکه دکلی ( یاتالاب یابل داسی شی)دعامو خلګولپاره وو اودوړلواجازه وی نوبیاروادی. (آپ کی مسائل مخ ۱۴۵ توک دریم

**داودس دځای نالی دمسجدغولی ته رااستل ؟**

پوښتنه :دمسجدبرنډی پرڅنګ وراسته طرفته داوداسه کولونالی ده اودغه نالی دباندی دمسجدغولی لاندی تیر شوی وی اودبندی والاداوداسه نالی باندی راځي له هغه سره ګډیږی ایاداوداسه اوبه د مسجدغولی لاندی تیرولاشی؟اوایاپه لمانځه کی څه فرق رانه ځی ؟

ځواب :که دمسجدجوړیدوپه وخت کی یی دغه ډول وی بیاشرعا صحیح ده ددی له کبله په لمانځه کښی هیڅ فرق نه راځی لیکن که دنالی روپه اسانی سره وبلی خواته بدلیدلای شی نودغه ډیرښه اومناسبه ده. (فتاوی محمودیه مخ ۱۹۸ توک لسم)

مسئله:داوداسه کولوورروسته ومسجدته دداخلیدوپه وخت کښی چی کوم څاڅکی داوبود مسجدپرفرش باندی ولویږی ددغه څاڅکود لو یدلو له کبله فرش نه خرابیږی همدارنګه له حوض څخه داوداسه کولو په وخت کښی احتیاط په کاردی چی په حوض کی څاڅکی ونه لویږی لیکن ددغه څاڅکوپه لویدلوسره حوض ناپاکه نه ګرزی.
(آپ کی مسائل مخ ۸۵ توک دریم)



مسئله:اودس وکړل شی وروسته پښی پرهغه ځای چی چوتی پرکښل کیږی کښیږدی اوبیادمسجدپرصف باندی تیرشی نوپه دغه وخت کی پښی ناپاکه نه ګرزی نوصفونه هم ټول پاک دی اودس اودټولولمونځ صحیح ده. (فتاوی دارالعلوم مخ ۳۷۳ لومړی ټوک بحواله ردالمحتار مخ ۳۲۴ لومړی ټوک )

**پرقبربرسیره اودس کول**

مسئله:درواياتوڅخه معلوميږی چی کوم چال چلند له چاسره چی په ژوندکی ثابت تکليفجن شوی دی له مرګه وروسته ئی هم هغه حکم دی اودابنکاره ده چی په ژوندکښی که دیوسړی سره نیژدی کښینی دارنګه اودس کوی چی داوداسه څاڅکی اوبه پرهغه بل سړی ښښلی نووهغه ته تکلیف رسیږی. (امدادالفتاوی مخ ۳۹ لومړی ټوک)

مسئله: پرداسی ځای اودس کول چی داوداسه اوبه پرقبرلویږی روانه ده. (امدادالفتاوی مخ ۷۳۰ لومړی ټوک)

**له کورڅخه په اوداسه راتلل ښه کاردی**

مسئله: له کورڅخه ومسجدته په اوداسه راتلل ښه دی له کورڅخه دمسجدوطرفته په اوداسه راتللوفضیلت په حدیثوکښی راغلی دی اوعقلاهم ددی غوره والی ښکاره دی ځکه چی په دغه کښی د مسجد ادب اواحترام دی که یوسړی په دربارکښی داخلیدل غواړی نودهغه دعزت کولوغوښتنه داده چی ځان پاک کړی اوله کورڅخه ولاړشی دارنګه نه چی ودربارته ورسیږی اوبیااوبه طلب کړی دغه ددربار دتعظیم خلاف کاردی څنګه چی وحرم ته دداخلیدونکی لپاره

دمواقیت څخه داحترام دتړلوڅخه دبیت الله دتعظیم ښکاروالی مقصوددی.

(احسن الفتاوی مخ۱۱ ټوک دوهم)

مسئله: نن سبأهم که په کورکښی اودس وکول شی اوبیاولاړشی وهغه ته ډیرثواب حاصلیږی لکین دمسجدلپاره داوداس اوغسل ځای جوړول ذریعه دثواب مسنون اومستحب دی. (الجواب المتین مخ۱۰)

په حدیث شریف کښی داغلی دی چی نبی کریم ﷺ وویل چی کوم څوک چی دفرض داداکولولپاره اودس وکړی له خپل کورڅخه ووزی ومسجدته نودغه کس ته هغه ثواب ورکول کیږی لکه څنګه چی دحج کوونکي اواحرام والاته ورکول کیږی

تشریح :لکه څنګه ثواب چی دحج داداکولواواحرام تړلووالاته ورکول کیږی ګواکی اودس دحج اواحرام مشابه ده یعنی (دحج پشان دی ) اومشابهت یي دارنګه بیان شوی دی چی لمونځ کونکی دلمانځه لپاره له کوره ووزی مسجدته ولاړشی اوبیاله لمانځه څخه فارغ شی څه وخت چی بیرته کورته نه وی راغلی ترهغه وخته پوری برابرثواب ورکول کیږی لکه څنګه چی حاجی دحج لپاره له کوره څخه وتلی وی اودحج داداکولووروسته کورته نه وی راغلی نوهغومره ثواب ورکول کیږی ددی خبری په ذهن کی ساتل پکاردی چی داوداسه اوحج په منځ چی کوم مشابهت بیان شو دایوجزی مشابهت دی مشابهت ئی په دی اعتبارنه دی چی په ټولووجوهاتوکښی ئی ثواب برابردی ځکه که دحج ثواب هم دومره شی څومره چی لمونځ کونکی ته ورکول کیږی بیابه حج کول دخلګوترنظرعبث اوبی ګټې



وګڼل شی دفرض لمانځه دکونکی مشابهت دحج کونکی سره ورکړل شوی دی دثابښت اونورولمنځو کونکوته دعمری له کونکوسره مشابهت ورکړل شوی دی.

(مظاهرحق مخ۴۱۸لومړی ټوک)

**له غسله وروسته اودس کول**

مسئله: اودس ددرو۳اندامو(مخ لاسونه اوپښو)مینځلواودسردمسح کولونوم دی اوکوم څوک چی غسل وکړی نودهغه سره اودس هم وشوله غسله مخکی اودس کول سنت دی که یوسړی له غسله مخکی اودس نه وکړی غسل یي صحیح دی اودغسل په کولوسره ئی اودس هم وشودمسح معنی ده لوندلاس پرسرتیرول څه وخت چی پرسرباندی اوبه واچوی اوتوی شی نودمسح څخه زیات غسل وشودعوامواداعمل چی له غسل څخه وروسته اودس کوی غلط کاردی اودس بایدله غسل څخه مخکی وشی ددی لپاره چی دغسل سنت پوره اداشی له غسله وروسته اودس کول روانه دی (آپ کی مسائل مخ ۲۸ټوک دوهم) مسئله:له غسله وروسته چی اودس مات شوی نه وی اودس کول ضروری نه دی.(آپ کی مسائل مخ۲۸ټوک دوهم احسن الفتاوی مخ ۹ ټوک دوهم بحواله ردالمحتارمخ ۹۹لومړی ټوک)

**دغسل په دوران کی که اودس مات شی نو؟**

پوښتنه :له غسل کولوڅخه مخته ئی اودس وکړلیکن دغسل په وخت کي ئی اودس مات شونودغسل کولووروسته اودس کول څنګه دی ؟

ځواب :که داوداسه ترماتیدووروسته غسل وکړی اوپه دغه کښی داوداسه اندامونه دوهم ځل ومینځل شی اوله دی څخه وروسته داسی

شي نه شي رامنځته چې اودس پرې ماتیږي نودده اودس وشوا ولمونځ په کولای شي.
مسئله:دامشهوره ده چې په بربنډ کیدلوسره اودس ماتیږي یاداچې دبربنډوالي په حالت کې اودس نه پاتې کیږي داصرف غلط دی.
(آپ کی مسائل مخ ۳۱ توک دوهم)
مسئله:دجنازې دلمانځه په اوداسه سره نورلمنځونه هم کیږي خو که د جنازې دلمانځه لپاره تیمم ووهل شي نوبیانورلمنځونه نه دي پرې روا
(آپ کی مسائل مخ ۳۱)
مسئله: دجنازې دلمانځه لپاره یادسجدې دتلاوت لپاره چې اودس وشي په هغه سره نورلمنځونه کول روادي بلکه داوبودنه موندلوله امله اودمرض له امله دجنازې دلمانځه لپاره چې کوم تیمم وهل شوی وي په هغه سره هم نورلمنځونه نه دي روا.
(احسن الفتاوی مخ ۸۱ توک دوهم بحواله ردالمحتار مخ ۲۲۶ لومړی توک فتاوی دارالعلوم مخ ۱۵۰ لومړی توک)
مسئله:بایددجنازې له پورته کولوڅخه مخکې اودس وشي ددې لپاره چې دجنازې لمونځ نشي تیرداحکم هم مستحب دی(مظاهرحق مخ ۴۸۲ لومړی توک)

## په ګرمواوبواودس کول

مسئله: په ګرمواوبواودس کول هیڅ پروانه لري.
مسئله:که داوداسه کولوپه وخت کښې داندام یوه حصه وچه پاتې شي نودوهم ځل اودس کولوته هیڅ ضرورت نشته بلکه دهغه وچې پاته شوې مینځل کافي ده لیکن پردغه وچه حصه اوبه بهول ضروري دي صرف لاسونه پرتیرول نه کافي کیږي.
(آپ کی مسائل مخ ۳۲ توک دوهم احسن الفتاوی مخ ۲۹ توک دوهم آپ کی مسائل مخ ۳۴ توک دوهم اواحسن الفتاوی مخ ۲۵ توک دوهم بحواله ردالمحتار مخ ۱۲۱ لومړی توک)



## دعذر له کبله په ولاړې اودس کول ؟

مسئله:په ولاړې سره اودس کولوسره دڅاڅکودغورځیدوویره وي ځومره چې مووس کیږي په ناستې اودس وکړي لیکن که مجبوري وي په ولاړې دریدلواودس کول هیڅ تاوان نلري.
مسئله: نن سباچې په کورونوکې دلوښودمینځلولپاره کومې نلکې پورته لګولې شوې دي خلګ له هغوڅخه په ولاړې اودس کوي نو دا رنګه اودس کول هم روادي خوښه داده چې مخ پرقبله کښیني اودس وکړي.
مسئله:که په ناستې اودس نشي کولای نوپه ولاړې دې اودس وکړي هیڅ تاوان نلري خودڅاڅکوڅخه ځان ساتل پکاردي.
(آپ کی مسائل مخ ۳۳ توک دوهم)
مسئله: په ناستې دې اودس وکړل شي که په ناستې دپښومینځلو کښې تکلیف وي یاپه ولاړواودس کولوسره داستعمال شوواوبوڅخه ځان خوندي کیږي نوپه ولاړه دریدلوسره پښې مینځل پروانه لري بلکه داستعمال شوواوبوڅخه دځان ساتلولپاره په ولاړومینځل ښه دي.(اداب وضوء درمختار مخ ۸۶ لومړی توک فتاوی محمودیه مخ ۱۶ توک اووم)

## په اوداسه کښې دمصنوعي ویښتانوحکم

که سړي دمجبوري له امله پرسرد مصنوعي ویښتانواستعمال کاوي نوهغه سړي داوداسه په وخت کې پرهمدغوویښتانومسح کولای ئي شي کنه؟

ځواب :دمصنوعی ویښتانو استعمال روانه دی اونه ددوی داستعمال
اړتیاشته دسردمسح په وخت کښې دوی لری کول پکاردی که مسح
پروکړل شی اودس نه کیږی. (آپ کی مسائل مخ ۳۶ټوک دوهم)

**داودس کولوپروخت دقبلی لورته توکل ؟**

پوښتنه :دقبلی وطرفته کښینی. اواودس وکړی نوپه دغه صورت
کښې توکل هم وکړی لیکن دقبلی لورته توکل منع دی ددی څه
حیثیت دی ؟

ځواب :دقبلی ولورته توکل مکروه دی که دقبلی ولورته مخ کړی
خولاندی دځمکی ولورته توکړی بیاهیڅ پروانلری لکه څنګه چی په
حدیث شریف کښې راغلی دی چی که دلمانځه په منځ کښې دتوکلو
ضرورت شی ترپښولاندی دي توکړی حالانکه په دغه وخت کښې
دلمونځ کونکی مخ دقبلی ولورته دی سره له دی چی لاندی دزمکی
ولورته دتوکلواجازه شته. (احسن الفتاوی مخ ۱۷ټوک دوهم)

پرخپل ځای چی لمونځ پرکوی اودارنګه پرخپلونوروشیانوتوکلای
شی لیکن په مسجد کښې دلمانځه پرځای توکل روانه دی.

**په اوداسه کښې دعذرله امله داندامووچول**

مسئله: په اوداسه اوغسل کښې پرله پسی والی سنت دی یعنی
دومره ځنډبه نه پکښې کوی چی تربل اندام پریمنځلوپوری لومړنی
اندام وچ شی همدارنګه دمسح وروسته اوپه تیمم کښې هم همدومره
ځنډنه دی پکارچی په دی وخت که کوم غړی مینځلای وای نوهغه
وچیدی داهم دسنت خلاف کاردی. (احسن الفتاوی مخ ۱۴ټوک دوهم بحواله
ردالمحتارمخ ۱۱۴ټوک دوهم)



مسئله: داوداسه په اندامو کښې پرله پسی والی سنت دی فرض نه دی
نوله دی کبله دوهم اندام دلومړي اندام داوبوله وچیدو څخه وروسته
مینځل مکروه دی سنت طریقه داده دمثال په توګه لومړی به مخ
مینځی دستی به لاسونه ترڅنګلوپوری مینځی چی څنګلی ئی نه وی
وچی شوی بیابه دی پرسرمسح کوی اوپاته اودس دی وکړی نوکه مخ
ومنځي دومره وځنډیدی چي داودس اوبه پرمخ وچی شی نواودس
صحیح کیږی خومکروه والی پکښې پاته کیږی.
(کتاب الفقه مخ ۱۰۱ لومړی ټوک)

مسئله:داوداسه اندامو کښې دترتیب لحاظ ساتل سنت دی نه فرض
(کتاب الفقه مخ۹۹ لومړی ټوک)

مسئله:دعذرله کبله که داوداسه په منځ کښې یواندام وچ پاته شی
اودس مکروه نه دی اودهغه اودس کامل (پوره )دی اوپه دغه اودس
سره لمونځ کولای شی اوبی له عذره داسی عمل کول یعني په اوداسه
کښې اندامونه وچول دسنت خلاف دی لمونځ بیاهم په دغه اوداسه
روادی. (فتاوی دارالعلوم مخ۱۴۷ لومړی ټوک بحواله ردالمحتارمخ ۱۴۸ لومړی ټوک)

مسئله: په اوداسه کښې که داندام یو حصي ته اوبه ونه رسیږی اووچه
پاته شی نوپردغه حصه دی اوبه وبهول شی بیااودس صحیح کیږی
خوکه داندام یوه حصه دمینځلواولندولووروسته وچه شی بیاپه
اوداسه کښې هیڅ زیان نه راځی اودس صحیح دی.
(فتاوی دارالعلوم مخ ۱۴۷ لومړی ټوک بحواله ردالمحتارمخ ۱۱۴ لومړی ټوک)

مسئله:داوداسه کولوپه وخت کښې که پندی ته یاویوبل ځای ته اوبه
نه ورسیږی اوداوداسه کولووروسته ورته معلومه شوه نوصرف په

لوندلاس تیرولوسره صحیح نه دی بلکه پرهغه ځای به اوبه بهوی.
(مراقی الفلاح مخ ۳۶لومړی ټوک )

**په اوداسه کښې اندامونه له درووارو څخه زیات مینځل**

مسئله:په اوداسه کې خلک لاسونه ترڅنګلو پوری ومینځی اوپیا دری واره اوبه پروبهوی نوشپږ ځله شوو که دری ځله په دی نیت سره ومینځل شی چی ثواب لری یاسنت دی نودغه عمل مکروه تحریمی دی اوکه دغه نیت یي نه وی بیله یوباعثه داعمل کوی نودغه عمل مکروه تنزهی دی اوکه دشک دلری کولواوداطمنان دحاصلولولپاره ددروځلوڅخه زیات ومینځی نوهیڅ کراهت نلری خودمدرسی یادمسجدپه وقف شوواوبوسره اندامونه تردروځلومینځلوزیات حرام دی.
(احسن الفتاوی مخ ۱۵ ټوک دوهم بحواله ردالمحتارمخ ۱۲۳اومظاهرحق مخ ۴۰۶ټوک لومړی)

مسئله:په اوداسه کښې دواړه لاسونه دری ځله مینځل په کاردی همدغه طریقه سنت ده پاته دلندولولپاره اوپه یوځل لاس تیره ولوسره هیڅ زیان نه راځی بلکه دغه ښه دی له دی وجي څخه چی دری ځله اوبه ښه باندی وبهیږی همدارنګه پرلاس باندی اوبه دګوتوله طرف څخه وبهول شی اودګوتوخلالول دی دمینځلوپه وخت کښې ووشی یادی دمینځلوڅخه وروسته ووشی په هرډول روادی.
(فتاوی دارالعلوم مخ ۱۲۸لومړی ټوک بحواله ردالمحتارمخ ۱۰۹لومړی ټوک کتاب الطهارة )

**دهراندام دری ځلومینځلوحکمت**

مسئله:په اوداسه کښې دهراندام دری ځله مینځل دنبی ﷺ دمبارک عمل څخه ثابت شوی دی (احسن الفتاوی مخ۹ټوک دوهم )دهراندام



ددروځلومینځلوحکم ځکه شوی دی چی له دروځلوڅخه په کم مینځلوکی پرنفس دیراغیزنه پیداکیږی اوداعمل په تفریط (کوتاهی )کښې داخلیږی اوپه زیات مینځلوکښې افراط (زیاتوب)اواسراف راځی ځکه که دمینځلولپاره یواندازه نه وای معلومه شوی نوبه وسواسیانوته وله ورځ دلاس پښوپه مینځلوکښې تیرولای اوله دوی څخه به دلمانځه وخت هم تیریدلای همدغه وجه ده چی یوصحابی ﵁ دنبی ﷺ څخه پوښتنه وکړه چی ایاپه اوداسه کښې هم اسراف شته ؟نبی کریم ﷺ وویل چی هو بی له شکه په اوداسه کښې اسراف شته که څه هم اودس کونکی دروانی ویالی پرغاړه ناست وی اواودس کوی. (المصالح العقلیه مخ۱۹)

**په اوداسه کښې دمسواک فضیلت**

حضرت عائشة رضی الله عنها وائی چی نبی کریم ﷺ وویل چی مسواک دخولی دپاکی ذریعه اودخدای جل جلاله درضااودخوشحالی وسیله ده د ام المؤمنین حضرت عائشة رضی الله عنهاڅخه روایت دی چی نبی کریم ﷺ چی به څه وخت له خوب څخه راپورته شو که به شپه وه که ورځ داوداسه کولوڅخه مخکی به ئی مسواک واهو له همدی مبارکی څخه روایت دی چی نبی کریم ﷺ وویل دکوم لمانځه داوداسه لپاره چی مسواک ووهل شی هغه لمونځ اویا۷۰درجی فضیلت زیات لری ترهغه چی مسواک ئی په اوداسه کښې نه وی وهل شوی (مظاهرحق مخ ۳۸۱لومړی ټوک )
حضرت عائشة رضی الله عنها بیان کوی چی نبی کریم ﷺ به څه وخت مسواک وواهونو وروسته به ئی مسواک ماته راکړ ددی لپاره چی زه

ئی ومینځم ځنګه چی به مالومړی مسواک وواهواوبیامی
ومینځلوونبی کریم ﷺ ته به می ورکاوو. (ابوداؤد)

تشریح :ددی لپاره چی زه هغه ومینځم په دغه ددی خبری دلیل دی
چی مسواک له وهلووروسته مینځل مستحب دی اوعلامه ابن همام
رحمة الله لیکلی دی چی دمسواک دری ځله ووهل شی اوهرځل په
اوبوومینځل شی دامستحب دی اوبل داچی مسواک بایدپوست وی
اولومړی به ماهغه مسواک واهی یعنی نبی کریم ﷺ به دمسواک
دهلو وروسته خپل مسواک ماته دمینځلولپاره راکړ مابه هغه تر
مینځلو مخکې په خوله کې واچاوی اووه به می واهواوحضرت
عائشې رضی الله عنهابه داعمل ځکه کاوی چی نبی کریم ﷺ کومی
ناړی پرمسواک لګیدلی وی هغه زماپه خوله کښې راشی چی له هغه
څخه برکت حاصل شی اوبیاله مینځلوڅخه وروسته هغه مسواک
حضرت عائشې رضی الله عنها ونبی کریم ﷺ ته ددی لپاره ورکړچی
که مسواک وهل پاتی وی نونبی کریم ﷺ به هغه پوره کړی په هرحال
ددی څخه دامعلومه شوه چی دبل مسواک په خوله کښې اچول اوهغه
وهل مکروه نه دی داهغه وخت که دمسواک دمالک خوښه وی
اودوهمه خبره دامعلومه شوه چی دصالحانودلاړو اونوروڅخه برکت
حاصولول غوره شی دی اودریم داچی دښځولپاره هم مسواک وهل
سنت دی.

(مظاهرحق مخ ۳۸۰لومړی توک) محمدرفعت قاسمی غفرله

داوداسه له ادابواوسنتوڅخه هیڅ یوعمل داسی نه دی چی دهغه
ټینګښت رسول الله ﷺ دومره کړی وی څومره چی هغه دمسواک په



متعلق کړی دی اونبی کریم ﷺ خپله هم ددې بی اندازې اهمیت بیان
کړی دی ددی لویه وجه داده چی دخولی څخه پرته دبدن په ښکاره
حصوکښې یوه حصه دانه ده چی په هغی کښې دومره لوندوالی
اودخوراک پاتی اجزأیوځای کیږی اودهوادنه لګیدوله وجی څخه په
خوله کښې بدبویي پیداکیږی له دی وجی څخه انسان په بدبویي
اوخیرنه خوله سره چی کله دقرآن کریم تلاوت اولمونځ کوی نودغه
وخدای پاک ته هم ښه نه ښکاری اوپاک مخلوق چی فرشتی دی له
هغه څخه په تکلیف کیږی په مسواک کښې دبدنی جوړوالی دبی
شماره ګټوسره یوه مهمه ګټه داده چی دغه سر ه خدای جل جلاله
خوشحاله کیږی اوپه عباداتوکښې داجراوثواب زیاتونکی دی.

(الترغیب والترهیب مخ ۳۴۶لومړی توک)

دمسواک په وهلوکښې که څه هم هیڅ ستونزه نشته خودلمانځه په ښه
والی اوغوره والی کې زیاتوب راځی اوانسان چی دخدای په
دربارکی په کومه خوله سره خبری کوی بایدهغه پاکه کړی
اوچمتوشی. (محمدرفعت قاسمی غفرله)

په حدیث شریف کښې راغلی دی چی نبی کریم ﷺ وویل که داخیال نه
وای چی امت به په لوی تکلیف کښې واچول شی نومی ودوی ته
داحکم کاوی چی دماخوستن په لمانځه کښې ځنډ کوئ اودهرلمانځه
لپاره مسواک وهی. (بخاری مسلم)

تشریح :که می داخیال نه وای چی امت به په تکلیف کښې ولویږی
یعنی که زه نه ویریدای چی دامت خلګ به په زیاته سختی کې مبتلا
شی اوپردوی باندی به تکلیف تیریږی نومایوه داخبره پردوی لازمی

کوله چې دماخوستن لمونځ تردريمې حصې دشپې پورې ياترنيمې
شپې پورې وځنډوی اوپه دغه وخت کښې يې وکړی اودوهمه مې
داخبره باندی لازمه وله چې دهرلمانځه لپاره يعنې دهرلمانځه
داوداسه په وخت کښې دی مسواک ضروری ووهی دادواړه عملونه
مستحب دی اوډيرفضيلت لری. (مظاهرحق مخ ۳۷۴لومړی توک)

**په مسواک وهلوکښې دنبی عليه السلام معمول (عادت)**

حضرت عائشة رضی الله عنهاوائی چې نبی کريم ﷺبه څه وخت
کورته راتلی نوله ټولوڅخه مخکښې به يې مسواک واهی( مسلم
)تشريح : دنبی ﷺپه طبعيت مبارک کښې چې څومره دنظافت
اوپاکۍ ماده په لويه درجه کښې وه دهمدی اغيزوو چې نبی کريم
ﷺبه څه وخت کورته راتلی نوبه يي ترهر څه لومړی مسواک وواهو
ددی وجه دااحساسيږی چې په مجلس کښې دډيرچپيدلوله کبله
اوډيرخبروله کبله په خوله کښې څه تغيرراځی هغه دمسواک په
وهلوسره لری کيږی خوکه حقيقت ته وکتل شی نودنبی کريم ﷺ دی
مبارک عمل وخلګوته ددی دښوولواوزده کولولپاره وو چې دخپل
کور وګړی بايدپه خپل منځ کې په ډيره پاکی نظافت اونرمی سر ه
هستو ګنه وکړی تردغه اندازی پورې چې دګډون اوخبروپه وخت
کښې چې يوکس دخولی دتغير(بدبويي )اودنوروپه صورت کښې له
تاسوڅخه بدوالی لری والی اوتکليف محسوس نکړی نوله دی امله
لومړی بايدمسواک ووهل شی اوعلامه ابن حجرليکی چې په دغه
حديث کښې دهرسړی لپاره ټينګښت دی چې څه وخت وخپل کورته
داخليږی نوترټولومخکښې دی مسواک ووهی ځکه چې په مسواک



وهلوسره خوله ډيره پاکه اوښه خوشبويه ګرزی اودغه دکوردوګړوسره
دښه تعلقاتواودښه چال چلندسبب ګرزی په دغه حديث کښې هغه
خلګ هم بايدفکراوغور وکړی کوم چې په کورکی
دکوردهستوګنوسره په ډيروخرابواوخيرنوجاموکښې ژوندسباکوی
اودباندی په ډيراهتمام سره وزی بی شکه له کورڅخه په وتلوکښې هم
دپاکی اهتمام کول دی خوپه کور کښې دی هم لږ څه وی لکه څنګه چې
نرخپله ښځه په ښه حالت کښي ليدل غواړی همدارنګه ښځه هم خپل
ميړه په ښه حالت کې ليدل غواړی علماؤليکلي دی چې دمسواک
وهلو اويا(۷۰) ګټې دی له هغوڅخه چې په ټيټه درجه کښې ده هغه
داده چې دمسواک وهونکی به دمرګ په وخت کی دشهادت کلمه په
خوله وی. مظاهرحق مخ ۳۷۴لومړی توک)
همدارنګه کوم څوک چې دمسواک پابنده وی اودمسواک اهتمام
کوی هغه به دخولی دکينسرڅخه بی غمه وی . (مولنامحمدرفعت قاسمي غفرله )

**مسواک څه دی اوڅنګه به وی ؟**

سواک (مسواک )توری دسوک څخه جوړشوی دی چې دهغه معنی
ده يوځای کيدل مښليدل په اصطلاح کښې( يعنی دمسواک وهلو)
مطلب دغاښونويومښول اودخولی پاکوالی دی اودغه غاښونو او
خولې پاکی که څه هم په هرهغه شی راتلای شی چې سخت اودغا
ښونوژړوالی اوخيری لری کولای شی خوددغه عمل لپاره چې شرعا
کوم شی اصل دی اوپه کوم شی سره چې سنت اومستحبوالی برکت
حاصليږی هغه لرګی دی چې مسواک ورته ويل کيږی دټولوعالمانو
پردی خبره اتفاق دی چې مسواک وهل سنت دی تردي اندازی پوری

چې دامام ابوحنیفه رحمة الله علیه مذهب دادی چې څه وخت اودس
کیږی بایدمسواک ووهل شی اودامام شافعی رحمة الله علیه مسلک
دادی چې څه وخت اودس کیږی مسواک هم ووهل شی اوڅه وخت
لمونځ کیږی مسواک هم بایدووهل شی ګواکی کوم سړی چې په یوه
اوداسه سره څلورلمنځونه کول غواړی نودامام شافعی رحمة الله علیه
د مذهب مطابق څلورځله دهرلمانځه په وخت کښې مسواک وهل
سنت دی ښکاره دی وی چې دسهاراودماپښین دلمانځه څخه
مخکښې دمسواک وهلوزیات ټینګار شوی دی دخولی پاکی وخدای
پاک ته خوښه ده اونبی کریم ﷺ به ددغه ډیرخیال ساتلو علماؤلیکلی
دی: چې دمسواک په بهتری کې څلویښت حدیثونه نقل شوی دی چې
دهغه څخه دخولی دپاک والی لپاره دمسواک اهمیت ښکاره کیږی
سره له دی چې خاص دخولی اودغاښونولپاره نه بلکه دټول بدن
دروغتیالپاره په مسواک وهلوکښې ډیری لویې لویې ګټې دی
نوځکه مسواک وهل په هروخت کښې مستحب اوښه دی خاص
بیاداوداسه کولوپه وخت کښې دقرآن دوویلوپه وخت کښې اوپه هغه
کښې چې غاښونه ژړشوی وی یادچپ کښېنستلویادلوږی له کبله
یادهغه شی دخوړلواوښبلوله کبله چې بدبویه وی دخولی
خوندخراب وی اوخوله بدبویه کیږی نوپه دغه وخت کښې دمسواک
وهل مستحب اوډیرښه دی مسواک بایدديو ترخې ونی څخه وی اوکه
دهغې ونی څخه وی چې له هغې څخه عام ډول مسواکونه جوړیږی
بیاخوډیرښه دی ځکه چې په حدیث شریف کښې ددغې ونی (درختی
)څخه دمسواک دجوړولویادونه شوی ده دمسواک لرګی دارنګه



کیدل پکاردی چې پنډوالی ئی ترغچنه ګوته کم نه وی اواوږدوالی به
ئی دیوی لویشتی سره برابروی همدارنګه دمسواک وهلوپه وخت
کښې داخیال ساتل پکاردی چې مسواک به دغاښونو پرپراخه حصه
بایدووهل شی نه دغاښونوپراوږده حصه ځکه دغاښو نوپراوږده
حصه باندی مسواک وهل اوری خرابه وی اولکه څنګه چې
ډیروعالمانولیکلی دی چې په اوداسه کښې مسواک بایدهغه وخت
ووهل شی څه وخت چې خوله مینځل کیږی اوځینوعلماؤ لیکلی دی
چې داوداسه دپیل کولوڅخه مخکښې بایدمسواک وو هل شی
(دواړی طریقی روادی)

مسئله: په یومجلس یادخلکوومخته دارنګه مسواک وهل چې ناړی
ئی غورځی مکروه دی خاص بیادعالمانواودبزرګانوپه مخکښې
ددغه ډول مسواک وهلوڅخه ځان ساتل پکاردی.

مسئله: که یوسړی مسواک نلری یادیوسړی غاښونه مات شوی وی
یاښوری مسواک نه شی وهلای نوهغه دی دښی لاس په ګوته سره
غاښونه پاک کړی.

مسئله: دامستحب دی چې مسواک وهل دغاښوله ښی طرف څخه پیل
کړی امام نووی رحمة الله علیه لیکلی دی چې دهغه معلومی شوی
درختی دلرګیو څخه مسواک جوړشی که مسواک نرم جوړول اسانه نه
وی نوپه دغه صورت کښې دی دیوپنډی اوځیږی جامی یادګوتی سره
ومښې غاښونه دی په پاک کړی چې په هغه سره دغاښواوخولی خیری
لری کیدای شی. مظاهرحق مخ ۳۷۳لومړی توک)

**په مسواک وهلوسره وینه راووزی**

پوښتنه : يوسړی که داوداسه کولوپه وخت کښې مسواک وهی نودخولی اونورواندامودمينځلوڅخه وروسته دهغه له غاښونوڅخه وينه راځی دوهم ځل دی اودس وکړی ؟ځواب :په دغه حالت کښې بايداودس دوهم ځل ووشی.

(فتاوی دارالعلوم مخ ۱۳۶الومړی ټوک بحواله ردالمحتارمخ ۱۲۸الومړی ټوک باب الوضؤ)

مسئله: که مسواک په هغه لوښی کښې واچول شی چی په هغه سره اودس کيږی ددی لپاره چی لوند شی نوددغه لوښی په اوبوسره اودس کول هيڅ پروانلری خوښه داده چی مسواک په اوبوسره ومينځل شی اونرم شی په لوشی کښې ئی داچولوضرورت نشته (فتاوی دارالعلوم مخ ۱۸۴الومړی ټوک بحواله ردالمحتارمخ ۱۰۵ لومړی ټوک )ځکه چی ونوروخلګوته په دغه لوښی سره اودس کولوکښې ستونزه وی اوځينی خلګ دخولی ناجوړی لری نوله دی وجی څخه وخلګوته تکليف رسيږی مولانامحمدرفعت قاسمی غفرله په اوداسه کښې دمسواک وهلو وروسته مسواک دپښی په ګوته کښې نيول سنت طريقه نه ده ددی هيڅ سندنه دی ثابت شوی (فتاوی محموديه مخ ۴۱ج۲)که اړتياشوه نيسی دی خوداخيال دی نه کوی چی سنت دی. مولانامحمدرفعت قاسمی غفرله

مسئله:مسواک وهل دنراوښځی دواړولپاره سنت دی.

(امدادالفتاوی مخ ۲۹لومړی ټوک )

په اصل کې سنت دونی مسواک دی که دغه نه وی نه پيداکيږی غا ښونه نه وی يادغاښواووری دخرابی له کبله په مسواک وهلوکښې تکليف وی نودضرورت له کبله دلاس په ګوتوسره ياپه پنډه جامه ياپه منجن (ديودوانوم دی چی غاښونه په مينځل کيږی )سره يادی دبورش څخه



کارواخلی خودمسواک ددرلودلوپه وخت کښې دغه ذکرشوی شيان دسنت دادالپاره بس نه دی اودمسواک پوره ثواب نه حاصليږی.

(فتاوی رحيميه مخ ۲۶ټوک دريیم بحواله شامی مخ۱۰۷الومړی ټوک وکبری مخ ۱۳۲اوهدايه مخ ۶لومړی ټوک وصغيری مخ ۱۴اوبحرمخ ۲۱الومړی ټوک اوعالمګيری مخ ۷لومړی ټوک )

مسئله: مسواک بايدديوی لويشتی څخه زيات نه وی په پيل کښې که يوه لويشت وی ښه دی اوکه کم وی پروانه لری بياپه وهلوسره چی څومره کوچنی شی داستعمال وړدی.

(فتاویٰ محموديه مخ ۲۹ټوک دوهم بحواله شامی مخ ۷۸لومړی ټوک )

مسئله:مسواک په اندازه ديوی لويشتی مستحب دی

مسئله: له پيل څخه مسواک ديوی لويشتی څخه کم جوړول د استحباب خلاف دی که داستعمال وروسته کم شی بياڅه تاوان نلری.

(احسن الفتاوی مخ ۱۵ټوک دوهم بحواله ردالمحتارمخ۱۰۷الومړی ټوک )

**له اوداسه وروسته خاص دلمانځه مخکي مسواک وهل څنګه دی ؟**

پوښتنه :په رياض کښې می خلګ وليدل په صفوکښې ناست وو مسواکونه ئی وهل څه وخت چی به اقامت پيل شودوی به هم مسواک وهل پيل کړل اووروسته به لمانځه ته ولاړشول لمونځ به ئی وکړڅه وخت چی لمونځ وشوماله امام څخه پوښتنه وکړه چی داډول مسواک روادی ؟نوامام وويل په حديث شريف کښې راغلی دی چی داوداسه څخه مخکښې اودلمانځه مخکښې مسواک ووهی :تفصيل راته وکړه :

ځواب :دغه امام چی دکوم حديث حواله درکړی ده هغه دادی که مو داويره نه وای چی خپل امت به می په تکليف کښې واچول شی نوو دوی ته به می دهرلمانځه په وخت کښې دمسواک وهلوحکم کړی وای

ددی حدیث په الفاظوکې دروایت نقل کونکواختلاف دی ځینی
حضرات دعندکل صلواةتوری نقل کوی اوځینی ددغه پرځای
د[عندکل وضؤ]توری نقل کوی. (صحیح البخاری مخ ۲۵۹لومړی توک)
ددی دواړوتوروپه وړاندی دامام ابوحنیفة رحمة الله علیه په
نزددحدیث مطلب دادی چی دهرلمانځه ځخه مخکښې اودس وکړی
اودهراوداسه په شروع کښې دمسواک وهلوترغیب درکول شوی دی
اودهرلمانځه ځخه مخکی دمسواک وهلوحکم ځخه مقصددادی چی
دهرلمانځه داوداسه له مخکښې بایدمسواک ووهل شی خاص
دلمانځه په وخت کښې دمسواک وهلوترغیب نه درکول کیږی که
دلمانځه لپاره دولاړیدوپه وخت کښې ووهل شی نو دغاښوځخه
دوینوراوتلوویره ده کوم چی اودس په ماتیږی نوځه وخت چی اودس
نه شوپاته لمونځ هم نه صحیح کیږی له دی کبله امام ابوحنیفة رحمة
الله علیه وائی چی دهرلمانځه داوداسه ځخه مخکښې مسواک وهل
سنت دی خاص د لمانځه په وخت کښې مسواک وهل نشته سره له دی
چی مسواک دخولی دپاکوالی اونظافت لپاره وهل کیږی اودغه
مقصودهغه وخت حاصلیږی چی داوداسه کولوپه وخت کښې
مسواک ووهل شی اوبیاوروسته خوله ومینځل شی لمانځه ته
دولاړیدوپه وخت کښې بغیرله اوبواوخولی مینځلوپه مسواک
وهلوپاکی نه راځی کوم چی دمسواک ځخه مقصودده دسعودی خلګ
ځرنګه چی دامام احمدبن حنبل په مذهب دی دده په مذهب کښي په
وینه راتلوسره اودس نه ماتیږی نوله دی کبله دوی چی لمانځه ته



ولاړیږی مسواک وهی اودحدیث شریف هم دغه منشأبولی (آپ کی
مسائل مخ ۳۵توک دوهم)
مسئله:داحنافوپه مذهب په روژه کښې هم دهرلمانځه داوداسه لپاره
مسواک وهل مستحب دی اوهغه دخولی بوی کوم چی الله تعالی ته خوښ
ده هغه دمسواک وهلووروسته هم وي .(فتاوی دارالعلوم مخ ۱۳۰ج۱ دهدایې ص
۲۰۳ج۱ په حواله)
مسئله:داوداسه کولوپه وخت کښې مسواک وهل سنت دی که ځه هم
پراوداسه باندی بل اودس وشی اودډوډی خوړلووروسته مسواک
وهل بیاځان ته سنت دی.
مسئله:مسواک وهل دښځولپاره هم سنت دی خوکه ددوی اووری
دمسواک وهلوځخه خرابیږی نوددوی لپاره ددلرمال استعمال دسنت
پرځای دریږی چی دمسواک په نیت سره استعمال شی.
(آپ کی مسائل مخ ۳۴توک دوهم ونمازمسنون مخ ۷۷)
مسئله:پرغاښوباندی دخیری پری وتلوپه وخت کښې له خوب ځخه
دراپورته کیدلووروسته په خوله کښې بدبویي وی نووخانه کعبی ته
دداخلیدوپه وخت کښې دیومجلس یاجماعت ته دتلوپه وخت کښې
اودقرآن شریف دویلوپه وخت کښې مسواک وهل مستحب دی.
(علم الفقه مخ ۸۳لومړی توک اوکتاب الفقه ۱۱۹لومړی توک)

**ایاپه برش وهلودمسواک سنت اداکیږی ؟**

مسئله:ښه خودادی چی دسنت داداکولولپاره مسواک استعمال شی
دبرش په استعمالولوسره دځینوعالمانوپه نزددمسواک سنت ادا
کیږی اودځینوپه نزدنه اداکیږی. (آپ کی مسائل مخ ۳۵توک دوهم)

په برش وهلوسره خاص دپاکي سنت اداکيږي پاته نورسنتونه نه ادا کيږي هغوی لکه داچي دهغه معلومی درختی څخه به وی یادترخی درختی څخه به وی اوږدوالی پنډوالی همدارنګه نور...

(محمدرفعت قاسمي غفر الله له)

مسئله:دبرش هغه وخت استعمال کیدای شی چی دحراموویښتا نو څخه به نه وی جوړلیکن په دغه سره سنت نه اداکيږي.(نمازمسنون مخ۷۷)

مسئله:که دغاښودرژیدلوله کبله دمسواک استعمال ممکن نه وی نوپه منجن (دواده دغاښودمنځلولپاره )یاپیسټ (لنده دواده )سره دمجبوری له وجی هم ثواب ورکول کيږي که مجبوری نه وی نو د مسواک ثواب نه ورکول کيږي. (نظام الفتاوی مخ ۴۳لومړی ټوک)

**داوداسه دواجبیدلوشرطونه**

(لومړی )مسلمان به وی پرکافراودس واجب نه دی (ځکه چی اودس عبادت دی وکافرته دعبادت کولوحکم نشته )

(دوهم )بالغ به وی پرنابالغه اودس واجب نه دی

(دریم )عاقل به وی پرلیونی مست اوبی هوښه باندی اودس واجب نه دی

(څلورم )داوبوپراستعمال به قادروی کوم سړی ته چی پراوبو استعما لولوقدرت نه وی پرهغه اودس نه دی واجب (پراوبودنه قدرت بیان دتیمم په بیان کښې راځی.

(پنځم)دلمانځه به دومره وخت پاته وی چی په هغه کښې اودس اولمونځ ځائيږي که سړی ته دومره وخت نه شی پیدانوپردغه سړی اودس واجب نه دی دمثال په توګه یوکافرپه داډول تنګ وخت کې



اسلام راوړی چی داوداسه اولمونځ دواړودځائیدلووخت نه وویایو نابالغه په دغه وخت کې بالغ شی.(علم الفقه مخ۵۳لومړی ټوک اوکتاب الفقه مخ۸۰لومړی ټوک)

مسئله: که یونابالغ اودس وکړی نواودس یې صحیح بلل کيږي لکه څنګه چی دبلوغ څخه لږمخکی اودس وکړی بیاوروسته بالغ شی نودده اودس اودس بلل کيږي ځکه جائزدی چی په دغه اوداسه سره لمونځ کولای شی ددغه صورت که څه هم واقع کیدل نادردی خودمسافرولپاره اودهغه خلګولپاره چی په صحراؤکې اوسيږي اوبه لږوی ګټوردی. (کتاب الفقه مخ۷۸لومړی ټوک)

**داوداسه دصحت شرطونه**

(لومړی وټولواندامونه اوبه رسول که دیوه ویښته په اندازه ځای وچ پاته شونواودس صحیح نه دی

(دوهم) پربدن به داسی شی نه وی چی دهغه له کبله وبدن ته اوبه نه رسيږي دمثال په توګه داوداسه پراندامو غوړی وی یایې په ګوته تنګه ګوتمۍ وی

(دریم) په کوموحالاتوکښې چی اودس ځی اوپه کوموشیانوچی اودس ماتيږي دغه شیان به نه وی په دی شرط چی دغه سړی به معذوره نه وی (دمعذوراودس په دغه حالاتوکښې هم صحیح کيږي لکه وچاته چی دسوزک ناروغی وی هروخت یې بولی روانی وی نوددغه سړی اودس په دغه حالت کې صحیح ده )که حائضه یانفاسه اودس وکړی نوصحیح نه دیجنوب (وچاته چی دغسل اړتیاوی )که

اودس وکړی اودس يي نه کيږی دبولواودګندګی کولوپه وخت کښې
که اودس وکړی نونه صحيح کيږی. (علم الفقه مخ ۵۳لومړی توک کتاب الفقه مخ ۸۲لومړی توک)
مسئله: که دحيض په حالت کښې اودس وکړی بيا له حيض څخه پاکه
شی نوددغه اودس ته اعتبارنشته ځکه چی له پيل څخه صحيح نه وو
(کتاب الفقه مخ ۸۳لومړی توک)

**داوداسه فرضونه**

(لومړی) تهوله مخ يوځل مينځل خوا داوداسه والائی خپله ومينځی
اويائی بل څوک ورومينځی ياپخپله ومينځل شی لکه يوڅوک چی په
درياب کښې لامبووهی يادباران اوبه يي پرمخ ونښلی دتهوله مخ
څخه مرادهغه اندازه چی دتندی څخه بياترزنئ پوری اوله يوه
غوږڅخه تربل غوږپوری ده دفقهاؤپه نزدمينځل له يوه ځايه پربل ځای
اوبه بهول اودانداِم دمينځلووروسته دستی به يودوه څاڅکی الوزی
(دوهم ) دسترګوچی کوم کونج دی اوپوزی ته نيژدی دی ددغه
مينځل فرض دی اواکثروخت پردغه ځای خيری يوځای کيږی بايد
دغه پاکی شی اوومينځل شی
(دريیم ) دزنی مينځل فرض دی په دی شرط چی دږيری ويښتان به نه
وی باندی ياويښتان خووی دومره وی چی زنه ښکاره کيږی
(څلورم) دشونډانوهغه حصه چی دبندولووروسته ښکاره کيږی
مينځل فرض دی
(دوهم فرض)



(لومړی ) ددواړولاسومينځل ترږيريوپوری فرض دی که ئی پخپله
ومينځی اوکه ئی بل څوک ورومينځی ياپخپله ومينځل شی دواړه
دی يوځای کړی ودي مينځی يادی بيل بيل ومينځی
(دوهم ) که دګوتوومنځ ته پرته له خلالولواوبه نه رسيږی نوخلالول
يي فرض دی
(دريیم ) که ديوسړی په يوه طرف کښې دوی پښی وی يادوه لاسونه
وو که يي په دواړولاسونوکارکاوی شيان يي په نيولای شوواوپه
پورته کولای يي شوو نوددواړولاسونومينځل فرض دی همدارنګه
که يي ددواړوپښوڅخه کاراخستلای شواوتللای شونوددواړو پښو
مينځل فرض دی که يي په دواړوکارنه شوای کولای بياکه ددواړو
ګوتی نښتی وی بياهم ددواړومنځل فرض دی اوکه يوځای سره
نښتی نه وی بيادهغه مينځل فرض دی چی کارپه کول کيږی دلاس
پښی په منځ کښې که بل لاس اوپښه نښتی وی دهغه مينځل په
اوداسه کښې فرض دی په دی شرط چی دداسی ځای سره به نښتی وی
چی دهغه مينځل په اوداسه کښې فرض وی دمثال په توګه په لاس
کښې دڅنګل يادڅنګلی څخه لاندی يوځای شين شوی وی په پښه
کښې دبجلکولاندی نښتئ ووکه دڅنګل يادبجلکی څخه لوړنښتی
وو نودومره حصه مينځل فرض دی چی دڅنګل يابجلکی دلاندی
حصی په برابری وی.
دريیم فرض:
دسرديوې حصې مسح کول دی.
څلورم فرض:

پنځم: کوم ځای چې دبارخوګانواوغوږونوترمنځ دی دهغه منځل فرض دی ږیری که راغلی وی کنه دواړی پښی تربجلکوپوری مینځل فرض دی په دی شرط که یي دپوست موزې نه وی اغوستی که دګوتوویبخوته پرته له خلال کولوڅخه اوبه نه رسیدلی نودګو تو خلال هم فرض دی (علم الفقه مخ۵۸لومړی توک شرح الوقایه مخ ۵۱لومړی توک هدایه مخ ۴لومړی توک مراقي الفلاح ۱۸کبیری مخ ۱۷شرح نقایه مخ ۴ابوداؤدمخ ۲۰لومړی توک قرآن کریم مائده پاره ۶)

مسئله:په اوداسه کښې دپښومینځل فرض دی اوپه قطعی ایات (وارجلکم)ثابت دی پرپښوباندی مسح هغه وخت کول کیږی چی دځرمنی موزی یي اغوستی وی مسح دشیعګانوقول دی هیڅ کله صحیح نه دی. (فتاوی دارالعلوم مخ ۱۲۷لومړی توک بحواله ردالمحتارومنیه مخ ۱۵)

**داوداسه وجبات (په اوداسه کی څوواجب دی**

مسئله: داوداسه څلورواجب دی

(لومړی ) که دوریځویاږیری یابریتوویښتان دومره ګڼ وی چی پوست یي پټ کړی وی نه معلومیږی نوپه دغه صورت کښې دهغه ویښتانومینځل واجب دی چی په هغه سره پوست پټ شوی وی.پاته هغه ویښتان شوو چی برسیره پرپوست زیات شوی وی مینځل یي نه دی واجب

(دوهم ) دږیریومینځل واجب دی که دیوچاویوه اړخ ته دوه لاسونه وی نوپرهغه ددواړولاسوږیری مینځل واجب په دی شرط چی ددواړولاسوڅخه به کاراخستلای شی که له دواړولاسوڅخه یي کارنه



شوای اخستلای اودواړه لاسونه یي یوځای یعنی سره نښتی وی بیاهم ددوهم لاس ږیری مینځل واجب دی اوکه یودبل څخه بیل وی نوبیاصرف دهم هغه لاږیری مینځل واجب دی کوم چی کارپه کول کیږی دلاس له منځه که دوهم لاس پیداشونودهغه څنګل یادڅنګلی په اندازه حصه مینځل واجب دی

(دریيم .) دسرپرڅلورمه برخه مسح کول واجب ده که پرسرباندی ویښتان وی نوپرهغه ویښتانومسح کول کوم چی دسرپرڅلورمه برخه باندی پراته دی واجب ده

(څلورم )ددواړوپښودبجلکومینځل واجب دی داهغه وخت چی دځرمنی موزې به نه وی باندی که دیوسړی په یوه طرف کښې دوی پښې وی نوپه دغه کښې هم هغه تفصیل دی کوم چی دږیریوپه بیان کی تیرشو .(علم الفقه مخ ۵۹لومړی توک )

مسئله: ږیره یابریت یاوریځی که دومره ګڼ وی چی پوست نه تر ښکاریږی نوددغه پوست مینځل فرض نه دی بلکه پرهغوویښتانو اوبه بهول چی دپوست پرځای ولاړدی کافی کیږی په دغه صورت کښې دهغوویښتانومینځل واجب دی چی دمخ په اندازه کښې دی پاته هغه ویښتان چی دمخ دذکرشوی اندازی څخه زیات وی دهغه مینځل واجب نه دی. (بهشتی زیورمخ ۱۳ توک ۱۱بحواله درمختارمخ ۹لومړی توک اوفتاوی دارالعلوم مخ ۱۲۶لومړی توک)

مسئله:دسترګی پوزی اوخولی دننه حصه مینځل فرض نه دی (۲)وریځی ږیره اوبریت که دومره ګڼ وی چی پوست نه ښکاریږی نو ددغه پوست مینځل فرض نه دی (۳)په اوداسه کښې چی دکوم

اندامومینځل فرض دی که پرهغه داسی شی نښتی ووچی داوبود
رسیدلوځخه یې منع نه کوله نودهغه لری کول فرض نه دی.
(علم الفقه مخ ۵۸لومړی توک

یادونه :که څه هم عزتمنوفقهاؤداوداسه اوغسل په احکا موکښې
دواجباتواوفرائضوتفصیل نه دی کړی دواړه یې یوځای جمع کړی
دی بلکه ځینوواجبات هم دفرضوپه عنوان سره بیان کړی دی
اوځینودا هم لیکلی دی چی په اوداسه اوغسل کښې هیڅ واجب نشته
ددی وجه داده چی په اودس اوغسل کښې دواړه په عمل کولوکښې
سره برابردی لکه څنګه چی دفرض په پری ښودلوسره اودس اوغسل
نه صحیح کیږی همدارنګه دواجب په پری ښودلوسره هم اودس
اوغسل نه صحیح کیږی خودکتونکوداسانی لپاره یې فرض بیل بیان
کړی دی اوواجبات یې بیل بیان کړی دی دمثال په توګه فقهاؤدواړه
لاسونه سره دبیریو مینځل فرض کړی دی موږخاص دلاسونو مینځل
په فرض کښې داخل کړی دی دبیریو مینځل مې په واجباتوکې لیکلی
دی.(حاشیه علم الفقه مخ ۵۹لومړی توک)

## داوداسه سنتونه

(لومړی ) داوداسه نیت کول دی :نیت دانه چی په ژبه سره څه ووایي
بلکه نیت دادی چی صرف اراده وکړی چی زه اودس صرف دثواب
اودخدای جل جلاله دخوشحالی لپاره کوم نه دلاس مخ اوپښو پاکو
لولپاره .(درمختار)

(دوهم) سنت دادی چی دغه کلمی: [بسم الله العظیم والحمدلله علی دین
الإسلام] ووایي اواودس پیل کړی.



(دریيم ) دمخ دمینځلوځخه مخکښې دواړه لاسونه سره دمړوندو
یوځل مینځل دی څه وخت چی لاسونه تربیریوپوری مینځي نولاسو
نه پیاله دغه ځخه مینځل پکاردی.

(څلورم)دري ځله خوله مینځل دی لیکن دهرځل اوبه به نو ي اوخوله
به ډکوی دومره زیاتوب مبالغه به کوی چی اوبه وحلق ته ورسیږی په
دی شرط که روژاتی نه وو که روژاتی وو بیادومره زیادت نه دی
پکار.

(پنځم) دخولی دمینځلوپه وخت کښې به مسواک وهی دمسواک
وهلو طریقه داده چی مسواک به په ښی لاس کښې داډول نیسی چی
یوه سرته یې نژدی بټه ګوته وی اوتربل سربه ګمچی ګوته لاندی کوی
پرمنځ اوپرلوړه حصه به یې نوری ګوتی وی داسی به یې نه نیسی چی
موټ بندکړی لومړی به دلوړوغاښوپراوږدوالی کښیږدی
اوښی طرف ته به یې کش کړی اوبیادی وچپه طرفته همدارنګه دی
بیادلاند ي غاښوسره وکړی اودیوځل مسواک وهلوځخه وروسته
مسوا ، دخولی څخه وکاږی او خوله دی له اوبوځخه خالی کړی اوپه
نوواوبو ی ووهی بیادی مسواک ووهی همدارنګه دی دری ځله په
دغه شاز سواک ووهی له دی څخه وروسته دی مسواک ومینځی
اودیوال نه دی جګ کړی پرځمکه دی نه ږدی دغاښونوپرپراخه حصه
دی مسواک نه وهی (یعنی )مسواک پرچپه اوښی حصه وهل
پکاردی نه پرلوړه اوکښته حصه باندی مسواک بایدسخت اووچ
لرګی څخه نه وی کوم چی وغاښوته زیان رسوی اونه بایدداسی نرم
اولوندی وی چی خیری نه پاکوی دپیلویازیتون یادیوترخی درختی

څخه باید نه وی درمیانه باید وی دډیری نرمی درختی څخه یادزهر
جنی درختی څخه بایدنه وی په اوږدوالی بایدیوه لویشت وی په
استعمالولوسره که کم شی پروانلری اوپه پنډوالی به دبټی ګوتی
څخه زیات نه وی سیده به وی که مسواک نه وی بیادی دګوتی
اوجامی څخه کاروا خلی.
(شپږم) په پوزه کښی دری ځله اوبه اچول دی اوهرځل به نوې اوبه وی
اودومره زیاتوالی به کوی چی اوبه دپوزی واخرته ورسیږی (یعنی
دپوزی وبیخ ته.
(اووم)ددروځلوخولی مینځلووروسته چی محرم نه وی (یعنی کوم
څوک چې دحج یادعمری په نیت داحرام تړلی وی اوداشرط ځکه چی
دږیری په خلالولوکښی دویښتانودماتیدوویره وی اوهغه څوک چی
احرام یي تړلی وی وهغه ته دویښتانودماتولوایجازه نشته بلکه ځینی
منع شوی دی )ږیره به خلال وی په دی شرط چی ږیره به ئی ګڼه وی
دخلال طریقه داده چی په ښی لاس کښی به اوبه راواخلی دزنی څخه
چې لاندې ویښتان دی دهغه په بیخوکښی دی واچوی اودلاس چپه
طرف دی دغاړی وطرف ته کړی ګوتی دی په ویښتانوکښی واچوی
دلاندی طرف څخه دی ولوړطرف ته کش کړی
(اتم) لاسونه به دګوتوله طرفه څخه مینځی دږیریوله طرفه څخه دی نه
مینځی.
(نهم) ترږیریوپوری له دروځلومینځلووروسته دلاس ګوتی دی دری
ځله خلالی کړی دلاس دګوتوخلالول هغه وخت سنت دی چی دګوتو
ومنځ ته اوبه رسیږی اوکه دګوتوومنځ ته اوبه نه رسیدی بیااوبه



وررسول فرض دی اوهمدغه صورت دپښودګوتوهم ده (اوددی
طریقه داده چی دیوه لاس چپه حصه دبل لاس پرورغوی کښیږدی
دلوړلاس ګوتی دلاندی لاس په ګوتوکښی واچوی اوکش دی کړی
(لسم) دپښوددروځلومینځلوپه وخت کښی هرځل دپښودګوتو خلا
لول دی دپښودګوتوخلال بایددچپه لاس په کوچنی ګوته وشی طریقه
یي داده چی دښی پښی دګوتوڅخه شروع کړی دچپه پښی پرکوچنی
ګوته دی پای ته ورسوی
(یوولسم)یوځل دټول سرمسح کول دی ددی طریقه داده چی دواړه
لاسونه سره دګوتواوورغوودی لانده کړی دسردمخ پربرخه دی
کښیږدی اووشاته دی کش کړی اوبیادی دشاله لوری څخه دسردمخ
لوری ته کش کړی
(دوولسم )دسردمسح څخه وروسته دغوږومسح کول دی په نویو
اوبوسره دی لاس نه لندوی بلکه دسردمسح لپاره چی لاسونه په
کوموا وبوسره لانده شوی وی په هغه اوبوسره دی دغوږو مسح وکړی
خوکه دسردمسح وروسته یي لاس پګړی یاخولی سره ونښلی اولاس
ئی وچ شونوبیادی دوهم ځل لاس لوند کړی دغوږودمسح طریقه داده
چی کوچنی ګوتی دی غوږوپه سوروکښی کښیږدی اوودي ښوروی
دشهادت په ګوتودی دغوږو دننه برخه اوپه بټه ګوته دی دغوږو
دباندی برخه مسح کړی .(البحرالرائق)
دیارلسم) هراندام دریځله داسی مینځل چی په هرځل مینځلوسره
اندام ټوله پوره ومینځل شی که اندام یوځل پوره ونه مینځی نوڅه

وخت چې ئې دوهم ځل اوبه پرتیرې کړې دغه دوهم ځل مینځل نه بلل کیږي بلکه یوځل ومینځل شو.

(څوارلسم) اودس په هغه ترتیب سره کول په کوم ترتیب سره چې لیکل شوي دي یعنې لومړی به خوله ومینځي بیابه پوزه ومینځي بیامخ بیادږیرې خلالول بیادلاسومینځل بیادګوتوخلال بیادسرمسح کول بیادغوږومسح بیادپښومینځل اوترټولووروسته دپښودګوتو خلالول

(پنځلسم) ښئي اندام ترچپه اندام لومړی مینځل.

(شپاړسم) دیوه اندام دمینځلووروسته ددوهم اندام په مینځلوکښې دومره ځنډنه کول چې هغه لومړی اندام وچ شي سره له دې چې هواهم برابره وی که یوچادضرورت له کبله دومره ځنډوکړ بیاهیڅ پروانه لري (یعنې بیله ضرورته دومره ځنډ بایدنه شي راچې هغه لومړنی اندام وچ شی.

(او ولسم) دمینځلوپه وخت کښې به اندامونه په لاس موښل اولاس به پراندامو باندې تیروي. (علم الفقه مخ ۶لومړی ټوک هدایه مخ ۵لومړی ټوک کبیری مخ ۳۳شرح النقایه مخ ۹لومړی ټوک وکتاب الفقه مخ ۱۰۵لومړی ټوک)

**داوداسه مستحبات**

په اوداسه کښې څوارلس(۱۴) مستحبات دي:

(لومړی )داوداسه کولوپه وخت کښې پرپورته ځای کښیناستل ددې لپاره چې استعمال شوې اوبه دجامواوبدن سره ونه نښلي.

(دوهم)داوداسه کولوپه وخت کښې وقبلې ته مخامخ کښیناستل.



(دریم )داوداسه لوښی به دخاوروڅخه جوړوی که داستېلویاګیلټ څخه جوړوی یادنوروّدارنګه شیانوڅخه جوړوی دپلاستک په لوښی سره هم اودس کول روادي.(فتاوی دارالعلوم مخ ۱۲۶توم لومړی بحواله ردالمحتارمخ ۳۰۰لومړی ټوک)

په اوداسه کولوکې له بل څخه دکومک غوښتنه نه کول یعنې په بل چاسره به اندامونه نه مینځي (خوداهغه وخت چې عذراومجبوری نه وی )بلکه خپله به یې مینځي که یوچااوبه درکړې اواودس خپله وکړې هیڅ پروانه لري.

(پنځم) داندامومینځل چې ترکومه ځایه پورې فرض یاواجب دي له هغه څخه به زیاتوب نکوي.

(شپږم) په ښی لاس سره خوله مینځل اوو پوزې ته اوبه وراچول دي

(اووم) په کیڼ لاس سره پوزه مینځل.

(اتم )وګوتمۍ یابل داسې شی ته حرکت ورکول چې اوبه لاندې ولاړې شي.

(نهم ) دغوږودمسح په وخت کښې دوی کوچنۍ ګوتې دغوږوپه سوروکې اچول.

(لسم) دپښي دمینځلوپه وخت کښې په ښی لاس اوبه ورباندې اچول اوپه کیڼ لاس مښوول.

(یوولسم ) په یخ کښې پرلاس اوپښولوندلاس تیرول دي چې په اسانی سره اوبه وټول اندام ته ورسیږي ځکه چې ځینې وخت پښه چاودلې وي نووهغه ته اوبه رسیدل اسانه نه وي.

(دوولسم) په اوداسه اوله اوداسه څخه وروسته هغه دعاوی ویل دی
کومې چې په حدیث شریف کښې راغلی دی دغه دعاوی داوداسه په
مسنونه طریقه کښې دی.
(دیارلسم) داوداسه له اوبو څخه دپاته شوو اوبو په ولاړې څښل دی.

**داوداسه مکروهات**

(لومړی) کوم شیان چې په اوداسه کښې مستحب وو دهغو پرخلاف
عمل کول اودس مکروه کوي.
(دوهم) اوبه له ضرورت څخه زیاتې مصرفول.
(دریم) اوبه دومره لږ استعمالول چې له هغه څخه اندامو په مینځلو
کې زیان راشي.
(څلورم) داوداسه په دوران کښې بیله ضرورته دنیاوي خبرې کول.
(پنځم) بیله عذره په اوداسه کښې دنورو اندامو مینځل.
شپږم: پرمخ اونورو غړیو په زوره اوبه ویشتل.
(اووم) ددرې ځلو څخه زیات اندامونه مینځل.
اتم: په نویو اوبو درې ځله مسح کول.
نهم: تراوداسه وروسته دلاسونو اوبه څنډل.
(علم الفقه مخ ۶۳ ج ۱، نورالایضاح مخ ۸، کتاب الفقه مخ ۱۲۳ الومړی توک)

**داوداسه مسنونه اومستحبه طریقه**

داودس کولو لپاره دخاورو یادبل شی په لوښي اوبه واخلی اوپر لوړ
ځای دی کښینی مخ دی وقبلی شریفی ته وګرزوی اوپه زړه کښی دی
داراده وکړي چې زه اودس خاص دخدای جل جلاله دخوشحالی لپاره
کوم مقصودمی دبدن مخ یالاسوپاکوالی نه دی دغه اراده دی



دهراندام دمینځلوپه وخت کښی کوی اوبیادی بسم الله العظیم
والحمدلله علی دین الاسلام ووائی په ښی لاس کښی دی اوبه
راواخلی دواړه لاسونه دی ترمړوندوپوری ومینځی همدارنګه دی
درې ځله وکړی بیادی په ښی لاس کښی اوبه راواخلی خوله دی په
ومینځی اومسواک دی په ښی لاس کښی دارنګه ونیسی چې کوچنۍ
ګوته دی دمسواک دیوه سرسره وی اوبټه ګوته دی دمسواک له بل
سرسره نیژدی وی اوپاته ګوتی دی پرمسواک برسیره وی اومسواک
دی دپورته لوری غاښنو پراوږدوالی کښیږدی وکیڼ طرف ته دی
راولی بیادی همدارنګه دلاندی غاښنوسره ولګوی بیادی مسواک له
خولی څخه راوباسی اوودی نوښتیزی اوودی مینځی بیادغه رنګه
درې ځله مسواک ووهی ددی وروسته دی دوه ځله نورپه خوله اوبه
وګرزوی ددی لپاره چې درې واره په خوله اوبه ګرزول پوره شی له
درووارو څخه دی زیات نه وی په خوله دی دارنګه اوبه ګرزوی چې
ترحلق پوری ورسیږي یعنی اوبه دی غرغره کړی په دی شرط چې
روژاتی نه وی دخولی دمینځلووروسته بسم الله اودشهادت دکلمی
وروسته دادعاوایی: (اللهم اعنی علی تلاوة القرآن وذکرک وشکرک وحسن
عبادتک) په پوزه کښی داوبواچولوپه وخت کښی دبسم الله اود شها
دت دکلمی وروسته به دادعاوایی: اللهم [ارحنی رائحة الجنة ولاتر حنی
رائحة النار]
بیادی په ښی لاس اوبه راواخلی پوزې ته دی دارنګه وروړی چې
دپوزی وبیخ ته ورسیږي داهغه وخت چې روژه یې نه وی اوپه کیڼ
لاس دی پوزه پاکه کړی دارنګه دې درې ځله عمل وکړی دهرځل لپاره

دی نوی اوبه رااخلی بیادی په دواړولاسوکښی اوبه راواخلی دټوله مخ سره دی ولګوی اوپري دی مینځی ترداندازی پوری چی په برابری دیوه ویښته باندی ځای پاته نه شی اوکه احرام یي نه وو تړلی نوږیره دی خلاله کړی دارنګه چی په ښی لاس کښي دی اوبه راواخلی دږیری دویښتانو بیخونه دی لانده کړی دلاس دشاه برخه دی وغاړی ته ورڅیرمه کړی ګوتی دی په ویښتانوکی واچوی له لاندی څخه دی وپورته خواته کش کړی دارنګه دی دوه ځله نورمخ ومینځي اوږیره دی خلاله کړی له درووارو څخه دی زیات نه مینځی ددی لپاره چی دری واره مخ ومینځل شی اودری واره ږیره خلاله شی اودمخ دمینځلوپه وخت کښی دبسم الله اودشهادت دکلیمی څخه وروسته دادعاوایي [اللهم بیض وجهی یوم تبیض وجوه وتسودوجوه]بیادی په ښی لاس کښی اوبه راواخلی ترږیریوپوری دی پروبهوی اوودی مو ښی اوودی مینځی چی دیوه ویښته په برابری ځای هم وچ پاته نه شی که یي په ګوته ګوتمۍ وی وهغه ته دی حرکت ورکړی که څه هم ګوتمۍ ارته وی همدارنګه ښځه دی وچلیانوته چی په غوږ کړی ئی وی حرکت ورکړی اوبنګړی چی ئی پلاس کړی وی حرکت دی ورکړی همدارنګه دی دوهم ځل لاس ومینځی بیادی په همدغه ډول کیڼ لاس دری ځله ومینځی اودښی لاس دمینځلوپه وخت کښی تربسم الله اودشهادت کلمی وروسته دی دادعاوایي: [اللهم اعطنی کتابی بیمینی وحاسبنی حسابایسیرا]اودکیڼ لاس د مینځلوپه وخت کښی دی تربسم الله اودشهادت ترکلیمی وروسته دادعاوائی: [اللهم لاتعطنی کتابی بشمالی ولا من وراظهری] بیادی دواړه لاسونه لانده کړی دپوره سرمسح



دی داډول وکړی چی دواړه ورغو ي سره له ګوتودسرپرمخکنی حصه کښیږدی له مخ څخه دی وشاته کش کړی اوبیادی دشاله خوادمخ وخواته راکش کړی اودغه لاسوسره که وچ شوی نه وی اوکه وچ شوی وی بیادی لانده کړی دغوږومسح دی په وکړی اوداډول چی دوی کوچنۍ ګوتی دی دغوږوپه سوریانوکښی کښیږدی اودسردمسح کولوپه وخت کښی دی بسم الله اودشهادت ترکلمی وروسته دادعاوایی:

[اللهم اظلنی تحت عرشک یوم لاظل الاظل عرشک]اودسرمسح دی یو ځل وکړی دغوږودمسح کولوپه وخت کښی دی دبسم الله اودشهادت ترکلیمی وروسته دادعاوایي:[اللهم اجعلنی من الذین یستمعون القول فیتبعون احسنه] اوبیادی دښی لاس څخه اوبه واچوی اوپه کیڼ لاس سره دی لومړی ښۍ پښه ومینځی دري ځله اوهرځل دی دچپه لاس په کوچنۍ ګوته څخه خلال بیادی چپه پښه ومینځی دري ځله اوهرځل دی دهغی ګوتی دچپه لاس په کوچنۍ ګوته باندی خلالی کړی چپه پښی خلال دی دچپه پښی دبټی ګوتی څخه پیل کړی دراسته پښي دمینځلوپه وخت کښی تربسم الله اودشهادت کلیمی وروسته دی دادعاوایي:[ اللهم ثبت قدمی علی الصرط المستقیم یوم تزل الاقدام] اودچپه پښی دمینځلوپه وخت کښی تربسم الله اودشهادت ترکلیمی وروسته دی دادعاوایی:[ اللهم اجعل ذنبی مغفوراوسعی مشکورا وتجار تی لن تبورا]اوس اودس پوره شواواودس دی په خپله بی دچاله مرستی وکړی (که معذور نه وو)اودیوه اندام دمینځلووروسته دی دستی بل اندام مینځی چی لومړی مینځل شوی اندام دهواله برابری

سره سره وچ نه شی که داوداسه له اوبوڅخه اوبه پاتی شی که دهغوڅښل وغواړی نوولاړدی شی اوهغه دی وڅښی اودشهادت کلیمه دی ووایی اودادعادی وکړی [اللهم اجعلنی من التوابین واجعلنی من المتطهرین واجعلنی من عبادک الصالحین واجعلنی من الذین لاخوف علیهم ولاهم یحزنون] همداغه اودس دی چی نسبت یي دنبی کریم ﷺ ارشاددی: چی که یوڅوک زمارنګه اودس وکړی نودهغه مخکنی ګناهونه بخښل کیږی. (علم الفقه مخ ۵۶لومړی توک مسلم شریف ۱۲۲لومړی توک کتاب الفقه مخ ۱۲۴لومړی توک ترمزی شریف مخ ۳۴لومړی توک بهشتی زیورمخ ۴۸لومړی توک)

مسئله:تراوداسه کولووروسته ځینی خلګ اناانزلناسورة ترپایه وائی ددی ذکرپه یوه روایت کی هم نه دی راغلی دځینومشائخوپه عادت مبارک کښی ددغه اودنورودعاوو دویلوذکرکه څه هم پیداکیږی خوپه صحیح حدیثوکی ددی ثبوت نشته کوم روایات چی په دغه اړه ذکرکیږی هغویٔ داعتباروړنه دی دغه پرځان لازمول اودغه مستحب ګڼل له سنتوخلاف کاردی (نمازمسنون مخ ۸۲تفصیل وګوری امدادالفتاوی جدیدمخ ۳۲لومړی توک )اوپه ویلوکښی ئی ثواب شته خوچی سنت یامستحب ئی ونه بولی داسی بلل ورلره پکارنه ده مولنامحمدرفعت قاسمی غفرله

حنفیه دغه دعاوی په سنت کښی نه شمیری بلکه دوی وائي چی دغه مندوب یامستحب دی.(کتاب الفقه مخ ۱۲۵ج۱)

مسئله: داوداس کولووروسته دشهادت دکلیمی دویلوپه وخت کښی واسمان ته کتل دنبی کریم ﷺ څخه ثابت دی: [سبحانک اللهم وبحمدک



اشهدان لااله الاانت استغفرک واتوب الیک واشهدان محمداعبدک ورسولک] (احسن الفتاوی مخ ۱۷توک دوهم بحواله ردالمحتارمخ ۹۵لومړی توک وفتاوی رحیمیه مخ ۱۴۰توک اووم اوشامی مخ ۱۱۹لومړی توک وفتاوی محمودیه مخ ۲۷توک دوهم) یعنی له اوداسه وروسته واسمان ته دکتلوپه وخت کښي دغه دعاویل دی دغه خاص له ادابوڅخه ده .مولنامحمدرفعت قاسمی غفرله

کوم څوک چی داوداسه کولوپه وخت کښی دغه دعاوائی دهغه لپاره دبخښلویوه پرچه لیکل کیږی اوپرهغه باندی مهرلګول کیږی اوایښودل کیږی دقیامت ترورځی پوری به هغه جوړه اوثابته پرته وی (دبخښلوحکم پرخپل ځای پاته کیږی. (حصن حصین عربی مخ ۴۸)

### داوداسه وروسته دتوبی ددعاویلوراز

په اوداسه کی داوواندامومینځلوڅخه داوګناهودپریښیدلوولورته اشاره ده اودخداي جل جلاله ولورته درجوع صورت اودښکاره اوباطني پاکوالی دعوه اودزبان حال دعاده له دی څخه وروسته دتوبی دعاپه ژبه ویل دخدای جل جلاله درحمت دجذب کولولپاره ډیره مناسبه اوتاکیدکړشوی دعوه ده ځکه چی څه وخت دانسان ښکاره حصه په اوبوسره پاکیږی نودده دفطرت غوښتنه وی چی زړه هم همدارنګه پاک شی خوهلته دخدای جل جلاله دقدرت څخه پرته دبل چاطاقت په کارنشی راتلای. (المصالح العقلیه مخ۱۵)

### داستحباب په ډول له اوداسه څخه دپاته شوو اوبودڅښلوراز

له اوداسه څخه دپاته شوو اوبوپه څښلوکښی دارازدی لکه څنګه چی انسان پرښکاره اندامو باندی اوبه اچوی دښکاره اندامودګناهو نوڅخه توبه کښونکی ګرزی همدارنګه داوداسه کونکی له طرفه

دپاته شوو اوبوپه څښلو کښې دا اشاره ده چې ای زما خالقه لکه څنګه چې تازما ښکاره یعنې ظاهرپاک کړی دی همدارنګه زماباطن هم پاک کړی. (المصالح العقلیه مخ ۱۷)

داوداسه په اوبو کښې یوخاص ډول برکت اوښه اثرپیداکیږی له همدی امله داوداسه څخه پاته شوی اوبه بایدوڅښل شی اوددغه اوبو څښل په ولاړه هم روادی. (مظاهرحق جدیدمخ ۳۹۶لومړی توک)

**په اوداسه کښې بایدمخ ترکوم ځایه پوری ومنځل شي ؟**

داوداسه دڅلورو فرائضو تفصیل کوم چې دحنفیه وو په نزد معتبردی (لومړی) فرض دمخ مینځل دی ددی متعلق څلور مسئلې دادی:

(۱)دمخ په څلوروحدودواوږدوالی اوپراخوالی کی څه شته ؟

(۲)دوهم داچې دږیری بریتواوورېځوویښتان ترکومی اندازی مینځل کیږی.

(۳)داچې دسترګو ظاهری اوباطنی کومو برخومینځل واجب دی اود کومو داواجب نه دی.

(۴)داچې دپوزی په بیخ کی دتیانوپشان غوښی ترکومه ځایه مینځل کیږی دمخ څلورحدود دغه دی دهغه چادمخ اوږدوالی چې ږیره نه لری دویښتانودشنه کیدوله ځای څخه بیاترزنی لاندی پوری دی دویښتانودشنه کیدودتندی څخه پورته دی عام ډول دانسان مخ دتندی له هغه ځای څخه پیل کیږی چې له هغه څخه ویښتان شنه کیږی دویښتانودشنه کیدوځای دتندی څخه پورته دی چې وهغه ته وایي : عامه یاقوره نوعموماًچې دانسان مخ دتندی دهغه اړخ څخه پیل کیږی له کوم ځای څخه چې ویښتان شنه کیږی دویښتانو دعادت



خلاف شنه کیدلوصورت دادی چې انسان به یااصلع وی یاافرع (یعنې یابه دلغړتندی والاوی یابه دکوچنی تندی والاوی )اصلع دپراخ تندی والاهغه څوک دی چې دهغه ویښتان د سره دمخ له لوری څخه ختلي وی تردی اندازی چې هغه داسی وی لکه ویښتان چې یي پیداشوی نه وی په دغه صورت کښې حکم دادی چې هغه ټوله ځای چې ویښتان ځینی ختلی وی مینځل یي واجب نه دی بلکه تر هغه ځایه پوری مینځل واجب دی چیری چي عموماً دسرویښتان شنه کیږي یعنی له تندی څخه څه قدرنورپورته برخه افرع (یعنی دکوچنی تندی والا )هغه څوک دی چې دهغه ویښتان دومره غټیږی چې دهغه پرتندی باندی راځی اودځینوخلکوګمان وی چې وریځو ته را رسیږی ودغه چاته اغم یعنی دګڼوویښتانوخاوندویل کیږی ددغه صورت هم هغه حکم دی کوم چې داصلع دی یعنی ودته هم دتندی څخه یوڅه اندازه پورته مینځل واجب دی ځکه چې دزیاتوخلکو دسروویښتان له هغه ځای څخه شنه کیږی په داسی صورت کښې دزیاتوتابعداری کیږی که یوسړی (موررزاده )له نوروانسانانوڅخه جلاوی نوپرهغه سړی باندی دعاموخلکوڅخه پرته نوراحکام نه جاري کیږی اوس بایدپوه شی چې په پراخوالی کی دمخ اندازه دیوه غوږله بیخ څخه دبل غوږ تربیخ پوري دی چې وهغه ته ځینی خلک نرمۍ یادغوږوپردی وائی نوښکاره شوه چې دزنی اوغوږوترمنځ کومه خالی ګاه ده هغه هم په مخ کښې شمارل کیږی نوله دی کبله ددی ځای مینځل هم واجب دی داحنافوو په نزددمخ پیژندنه دپرا خو الی اواوږدوالی په اعتبارهم دغه ده. (کتاب الفقه مخ ۸۸لومړی توک وامدادالفتاوی مخ ۳۱لومړی توک)

**په اوداسه کښې دږيرې اوبريتومتعلق مسئلې**

مسئله: پرمخ چې کوم ويښتان دي په هغوی کښې ترټولوديادوني وړږيرې اوبريتوويښتان دی دږيرې دويښتانومتعلق حکم دادی چې دمخ دپوست سره کوم ويښتان دی دپورته څخه بيادزنې ترلاندې پورې چې بشره ورته يل کيږي ددغه مينځل واجب دی اوددی څخه چې کوم زيات شوی ويښتان دي دهغومينځل واجب نه دی نوځکه هغه خلک چې ږيرې يې اوږدې وي پردوی خالي دهغوويښتانو مينځل واجب دی کوم چې دمخ پرپوست باندې شنه وی اودهغو ويښتانومينځل کوم چې دزنې پرپورته نې برخه باندې وی له دې څخه پرته دزياتوويښتانو مينځل واجب نه دی که ويښتان کوچنې وی د مخ دپوست وبرخې ته اوبه رسيدلای شي نوددغه ويښتانو خلالول (يعنی دلاس گوتې دی دږمونځ پشان پکښې کښول واجب دی کنه دنوروويښتانو دپورته څخه مينځل کافي دی دبريتو دويښتانومتعلق په مسئلوکښې اختلاف دی ځينې وايي که بريتونه گڼ وی چې اوبه وپوست ته نه رسيږی نواودس باطليږي اوځينې بياوايي چې اودس باطل نه دی بلکه دږيرې په شان دښکاره برخې په مينځلوسره صحيح کيږي ترکومه ځايه چې داوداسه تعلق دی فتوی پردغه جاري شويده چې نه باطليږي ليکن په غسل کښې دبريتودگڼوالي رعايت نه کيږي (يعنی که خالي پرښکاره مينځلو باندې کفايت وشي غسل باطليږي غالباددی وجه داوی چې نبی کريم ﷺدبريتودغتيدوڅخه منع کړيده ځکه چې په دغه کښې دخورک خندوالی تينگ پاته کيږي نوځکه په



تينگښت سره حکم دی چې دغه ومينځل شي اوبيله گټې بايدنه شي لوی.

**په اوداسه کښې دوريځودويښتانومتعلق مسئلې**

پاته هغه ويښتان شوو چې دسترگوڅخه پورته دوريځودي ددې متعلق حکم دادی که ويښتان کوچنې وی اوبه ترپوست پورې رسيږي نوددې ښورول واجب دی ددې لپاره چې اوبه دويښتانو وبيخوته ورسيږي که گڼې وی خلالول يې واجب نه دی دپوزې په هکله حکم دادی چې ددې ټولې ښکاره برخې بايدومينځل شي ځکه چې دادمخ يوه برخه ده که لږڅه برخه يې وچه پاته شي که هرڅومره لږ وی نواودس فاسديږي ددوو تينکوترمنځ چې کومه پرده ده ددې لاندې برخې په پوزه کښې شامله ده دحنفيانوپه نزددپوزې ددننه برخې مينځل فرض نه دی خوکه پرمخ باندې زورټپ وی نوو هغه ته اوبه رسول واجب دی (داهغه وخت چې په ټپ کې تکليف نه وی )لکه څنگه چې دمخ ولاندې ځايوته چې له کمزوروالي څخه پيداشوی وی اوبه وررسول واجب دی.

مسئله: داوداسه کولووروسته که ږيره کوچنې ياوخرپيل شی نو اودس نه باطليږي. (کتاب الفقه مخ ۸۹لومړی توک واحسن الفتاوی مخ۱۶توک دوهم وامدادالفتاوی مخ۳۰لومړی توک)

مسئله:په پوزه کې بيله اوبواچولواودس صحيح دی خودسنت خلاف دی. (فتاوی دارالعلوم مخ۱۲۵لومړی توک بحواله ردالمحتارمخ ۱۰۷لومړی توک)

مسئله:په غسل کښې په پوزه کښې دننه په هډوکی کی اوبه اچول فرض نه دی بلکه له کوم ځای څخه چې هډوکئ پيل کيږي ترهغه ځای

پوری اوبه رسول فرض دی چی په لړاهتمام او اسانی سره رسیږی (اوبه
دساپه ذریعه ددماغ ولورته دکشولو هیڅ اړتیانشته یوازی لکه څنګه
چی په اوداسه کښی وپوزی ته اوبه اچول کیږی هغه کافی کیږی.
(احسن الفتاوی مخ ۳۸ توک دوهم وکشف الاسرار مخ ۱۹ لومړی توک وفتاوی محمودیه مخ ۲۵ توک دوهم)

## په اوداسه کښي لاس ترړیږیوپوری دمینځلوراز

دقوت دوینی پاکی دزړه اوځګرلپاره دلاسونومینځل ډیرګټمن دی
دلاسوهغه رګونه چی په واسطه یاپیله واسطی وزړه یاځګرته رسیږی
هغه په مینځلوکښی شامل شی اوهغه رګونه چی زړه یاځګرته رسیږی
هغه ځینی دلاس دګوتوځینی دورغوو اوځینی له ړیږیوڅخه پیل
کیږی له دغی وجه څخه دلاس مینځل ترړیږیوپوری کیږی ددی لپاره
چی ټول رګونه په مینځلوکښی شامل شی دلاسواودمخ دمینځلوڅخه
زړه اوځګرته قوت رسیږی اوداوبواثردرګوپه همدا رنګه دزړه
اودځګرڅخه پرته ددی اثرپرنوربدن باندی هم لویږی بس
دلاسو مینځل ترړیږیوپوری هم له دی امله وټاکل شوچی دبدن درګونو
په ذریعه د اوبو اثروټوله بدن ته دننه ځی څه وخت چی اصل په اوداسه
کی دبدن داطرافو مینځل مقررشونودلاسو مینځل ترړیږیو پوری ځکه
وټاکل شوچی له دی څخه دلږومینځل اثردانسان پرنفس باندی نه
ښکاری ځکه دلاس دړیږی څخه پرته اندام نه بلل کیږی. (المصالح العقلیه
مخ ۲ لومړی توک)

## په اوداسه کښی دړیږیوپه اړه مسئلې



مسئله: داوداسه دفرائضوڅخه دوهم فرض لاس ترړیږیوپوری مینځل
دی دړیږی څخه مراددجوړهغه راپورته شوی هډوکی چی دلاس
پرلاندی سرباندی وی دهغه په اړوندیوڅومسئلې دی یوه داده چی که
دانسان دلاس ګوتی پنځه وی نودهغه مینځل واجب دی لیکن که پوره
لاس زیات وواوهغه زیات لاس دقدرتی لاس سره یوځای وو نودهغه
مینځل واجب دی که له هغه څخه وتلی وی بیاترهغه ځای پوری
مینځل واجب دی ترکوم ځای پوری چی برابروی دزیاتی برخی مینځل
واجب نه دی لیکن مستحب دادی چی هغه هم ومینځی دوهمه مسئله
داده که په لاس یانوک کښی یوشی بندشی دبیلګی په توګه وړه خاوره
نوضروری دی چی لومړی هغه وباسی اواوبه دی دنوکانوبیخوته
ورسوی که نه ورسیږی نواودس باطلیږی دنوکانو د بیخوڅخه
مرادهغه برخه ده کوم چی دګوتودغوښی سره پیوندوی.
مسئله: که نوک دومره لوی شوی وی چی دګوتی څخه وتلی وی
نودهغه مینځل واجب دی که نه ومینځل شی نواودس باطلیږی اوهغه
خیری اوکه چری چی دنوکانولاندی وی ددی په هکله مفتی به قول
دادی چی دغه اودس ته هیڅ تاوان نه رسوی (هغه وخت چی اوبه
وررسیږی اولوند شی )خواه اودس کونکی دښاریادسحراوی دغه
حکم له سستی څخه دژغورلولپاره دی دخاوندانودتحقیق حنفیانوپه
نزدباندی داضروری دی چی دلوی شوونوکانولاندی چی کومی
خیری وی هغه بایدومینځل شی که دغه نه ومینځل شی نواودس
باطل دی (هغه وخت چی وچوالی پاته شی )ددی څخه پرته هم دغه
عمل ښه دی ځکه چی دغه خیری چی دنوکانولاندی یوځای شوی وی

دناروغی سبب ګرزی دډوډی پخوونکی چی نوکان یي لوی وی اوترهغه لاندی اوړه یوځای شوی وی نوددغه کارپه وړاندی دی معاف بلل شوی دی.

مسئله: دنکریځویادرنګ استعمالولوڅخه چی کوم رنګ پاته شی له دی څخه په اودس کښی څه زیان نه راځی خوچی نکریځی که پرلاس پاته شی ددی له کبله په اودس کښی تاوان راځی ځکه چی هغه داوبودرسولوڅخه منع کونکی ګرزی.

مسئله: که دیوچادلاس یوڅه برخه پری شوی وی نوپاته برخه دی ومینځی که پوره هغه اندام پری شوی وی چی مینځل یي واجب وی نودهغه مینځل هم ساقطیږی. (کتاب الفقه مخ ۹۰ لومړی ټوک)

مسئله: دلاسودګوتو خلال دلاس ترږیریوپوری دمینځلوروسته کیږی اودپښودګوتوخلال دهغه دمینځلوروسته کیږی ښه همدغه دی. (مظاهرحق مخ ۳۹۵ لومړی ټوک)

مسئله: رنګریز چی دجامودرنګولوکارکوی دهغه پرلاسوچی کوم رنګ ولګیږی دهغه دلری کولوضرورت نشته خوکه پرلرګی یاو سپنی باندی دټینګیدورنګ (یعنی هغه رنګ چی اوبه نه تروزی ) پرلاس باندی ونښلی نودادی لری کړی ددی پرته اودس نه صحیح کیږی خوکه داسی رنګ نه وی چی له لاس څخه دی اوبه بندی کړی نوله دی سره اودس صحیح کیږی ځکه چی په دغه وخت کښی داسی شی نشوپاته چی اوبه منع کړی. (احسن الفتاوی مخ ۲۰ ټوک دوهم بحواله ردالمحتارمخ ۱۴۳ لومړی ټوک)

**په اوداسه کښی پښی ولی تربجلکوپوری مینځل کیږی ؟**



(لومړی ) دپښوتربجلکوپوری دمینځلورازدادی چی هغه رګونه چی دماغ ته رسیږی هغه څه دپښودګوتوڅخه پیل کیږی اوددغه ټولو دشاملیدوله کبله ددماغ بخارونه یعنی ګرموالی مړه کیږی همدغه وجه ده چی دپښومینځل تربجلکوپوری تاکل شوی دی.

(دوهم ) ځکه چی پښی زیات وخت تربجلکوپوری لڅی وی اوپرهغه باندی ضرر من اثرات اوګرزاوغبارلویږی نوځکه دپښودبجلکوپوری دمینځلوحکم شوی دی.

(درییم ) دپښوتربجلکودمینځلورازداهم دی چی دبجلکوڅخه کم پوره اندام نه دی اوسره ددی چی دټوله اندام مینځل مقرر شوی دی ددی لپاره چی ددی دمینځلواثرپه ټول مینځلوسره وی. (المصالح العقلیه مخ ۲۴)

**په اوداسه کښی دپښواوبجلکوپه اړوند مسئلی**

داوداسه له فرائضوڅخه دریيم فرض دواړی پښی تربجلکوپوری مینځل دی بجلکه وهغه هډوکی ته وائی کوم چی دپنډۍ یالینګی پرکناره له پښې څخه پورته راوتلی وی پراودس کونکی باندی داواجبه ده چی دپنډۍ ولاندی طرف ته خاص فکروکړی همدارنګه دی دپښی ولاندی برخی ته چی چاوددلي وی فکرکول هم ضروری ده که دپښی ټوله برخه یاټوله پښه پری شوی وی نوددی حکم دهغه لاس دحکم په شان ده کوم چی پوره پری شوی وی چی پورته ذکرشوو.

مسئله: که لاس یاپښه غوړکړی اوبیااودس وکړی اوبه پورته باندی وبهیږی اودغوړوالی له کبله اوبه اندام نکړی جذب نوله دی څخه په اوداسه کښی هیڅ تاوان نه راځی.

مسئله: که پښې چاودلې وې او پرهغه باندې ملهم یا واسلین لګولی وي او دهغه لاندې ته اوبه رسول ضررمن وي نو مینځل یې واجب نه دي که مینځل یې ضررمن نه وي بیا دې پټې لرې کړي هغه لاندې برخه دې ومینځي.

مسئله: که په پښه کښې چاوده وي چې دهغه مینځل یا لړترلړه په او بوکې یې اچول بیله مښلو دباندې رایستل ضررمن وي نو دمینځلو فرضیت یې ساقطیږي وهغه ته پکاردي چې لوند لاس پرتیر کړي یعنې مسح دې پرو کړي او که له دې څخه هم عاجزوي نو مسح هم ساقطیږي صرف دهغه برخې مینځل واجب دي چې مینځل یې ضررمن نه وي

دمولانا اشرف علي تهانوي رحمة الله علیه په مواعظ علم او عمل مخ ۳۳ کښې لیکلي دي له اودس کولو څخه مخته باید پښې لندې شي دغه ښه عمل دی کولای یې شي مقصود دپښو په مینځلو کښې مبالغه کول دي او مخته دپښو لندول (په مینځلو) کښي له دغې وجې څخه معلوم شو خو دغه دې سنت طریقه نه بولي. (فتاوی رحیمیه مخ ۲۴۷ توک څلورم)

**په اوداسه کښې دسرمسح په اړوند مسئلې**

داوداسه له فرائضو څخه څلورم شی دسر د څلورمې برخې مسح کول دي او د څلورمې برخې اندازه یو ورغوی تاکل شوی دی له دې کبله واجب دي چې دپوره ورغوي په برابرۍ دسر د برخې مسح دې ووشي نو ځکه که لاس داوبو سره لګیدلی وي او دغه لاس دسر پر شا یا پرمخ یا پر بل لوري باندې وګرزول شي نو مسح صحیح کیږي پردغه بنا باندې دمسح لپاره دا ضروري نه ده چې خاص په ورغوي سره به



مسح کوي بلکه پر څلورمه دسر باندې (دورغوي په اندازه پرځای) دلوند لاس او به رسول کافي دي.

مسئله: په لاس باندې دمسح کولو لپاره دا شرط دی چې لږترلږه په درو (۳) ګوتو استعمال کوي ددې لپاره چې دوچیدو مخته دسر د څلورمې برخې پورې او به ورسیږي.

مسئله: که دوې ګوتې دمسح لپاره استعمال وکارول شي نوزیات وخت دسر و څلورمې برخې ته دلاس درسولو مخته ګوته وچه پاتیږي او اوبه هلته نشي رسیدلای تر کوم ځای چې مقصود دی.

مسئله: که دګوتو په سر و سره مسح ووشي چې له هغه څخه دومره او به غورزیدلې چې تر هغه ځایه پورې رسیدلې تر کوم ځای پورې چې یې رسول مقصود دي نو مسح صحیح کیږي که دا رنګه نه وو بیا نه صحیح کیږي له دې کبله چې دسر د مسح لپاره نوي او به شرط نه دي نو که لاس لوند وو نو مسح صحیح کیږي لیکن دانه دې روا چې دبل اندام په لوندوالي سره مسح وشي دبیلګې په توګه دڅنګلې د مینځلو وروسته لاس وچ شو بیا دې دڅنګلې په اوبو سره لوند کړي او دسر مسح دې په وکړي نو دغه نه کافي کیږي.

مسئله: دکوم سړي چې دسر ویښتان اوږده وي وغاړې او تندي ته ځړیدلي وي که پردغه ځړیدلو ویښتانو مسح وشي نو مسح نه ده روا ځکه چې دمسح څخه مقصود مسح د څلورمې برخې دسر ده او سر که سر خرپیل شوی وي بیا خو هیڅ خبره نه ده (چې دسر مسح کول کیږي) خو که پر سر باندې ویښتان وي نو پر دغه ویښتانو مسح کول ضروري ده کوم چې دسر دیوې برخې څخه پورته شوي وي یعنې کوم ویښتان

چې ځړېدلې وي هغه خوپرسرباندې بالکل نه دي نوددې دمسح څخه دسرمسح نه صحیح کیږي.

مسئله: که دسرځینې برخه خرپیل شوې وي اوځینې برخه یې نه وي خرپیل شوې نوپرهره برخه چې مسح وشي صحیح کیږي.

مسئله: دسرله مسح څخه وروسته دوېښتانوپه کمولوسره مسح نه باطلیږي.

مسئله: که دیخې ټوټه پرسرباندې وګرزول شي نومسح صحیح کیږي چې دمسح په نیت سره وي.

مسئله: که سراومخ یوځای ومینځل نوصحیح کیږي خومکروه ده

مسئله: پرپګړي اونورداسې شیانوباندې بیله ضرورته مسح کول صحیح نه ده همدارنګه دښځې لپاره پردسمال یاټکري باندې چې پرسرکړې یې وي مسح کول روانه ده خوکه هغه دومره نرم وي چې پرهغه مسح وکړل شي اوبه وېښتانوته رسیږي نورواده.
(کتاب الفقه مخ ۹۲ لومړی توک اوفتاوی دارالعلوم مخ ۱۲۵ لومړی توک بحواله ردالمحتار مخ ۹۲ لومړی توک)

مسئله: دسرپه مسح کښې سنت طریقه داده: چې په دواړولاسونوسره وشي که په یوه لاس وکړل شي مسح صحیح ده خودسنت طریقې موافق نه کیږي. (فتاوی دارالعلوم مخ ۱۳۰ لومړی توک بحواله عالمګیری مخ ۴ لومړی توک)

مسئله: دغاړې مسح دګوتوپه شاسره لکه څنګه چې مشهوره ده صحیح ده. (فتاوی دارالعلوم مخ ۱۳۲ لومړی توک بحواله ردالمحتار مخ ۱۱۵ لومړی توک

مسئله: که دعطروپمبه په غوږوکې پراته وي دمسح کولوپه وخت کې هغه لرې کول سنت دي (ځکه چې دغوږودټولې برخې مسح سنت ده اودابیله دې چې پمبه نه وباسي ممکنه نه ده اودسنت موقوف علیه



سنت وي نوځکه ددې لرې کول سنت دي ) اوکه په سوریانوکښې ایښودل شوې وي بیایې لرې کول مستحب دي ځکه چې دغوږو په سوریانوکښې ګوتې وهل مستحب دي کوم چې بې له پمبه لرې کولوممکن نه دي نوځکه ددې لرې کول مستحب دي (امدادالفتاوی مخ ۳۵ لومړی توک مع حاشیه استاذی مولانامفتی سعیداحمدصاحب مدظله )

مسئله: دعذرپه وخت کې یوازې په یوه لاس سره پرسراوغوږو مسح کولای شي. (امدادالفتاوی مخ ۳۵ لومړی توک)

مسئله: څوک چې په اوداسه کښې یوازې دسرپرمسح کښې پرڅلورمې برخې بسنه اوهیڅ کله دټول سرمسح نکوي نودغه عمل مکروه ده
(امدادالفتاوی مخ ۳۶ لومړی توک)

مسئله: که دسړي په سرکښې دومره ټپ یادردوي چې مسح نه شي کولای وهغه ته دسرمسح معاف ده.
(علم الفقه مخ ۸۳ لومړی توک اوکتاب الفقه مخ ۱۱۹ لومړی توک

## په اوداسه کښې دپوزې دپاکولوحکمت

دهرمذهب اوملت خلک دپوزې ګړنګ اوخیرې لرې کولوته په ښه نظرګورې که دننه پوزه ونه مینځل شي نودپوزې دوچ شوي ګړنګوڅخه ودماغ ته ناوړه اغیزرسیږي چې ځینې وخت دمرګ سبب ګرزي همدارنګه دعربوپه رواج دپوزې توری دعزت اوزیاتوالي پرځای کارول کیږي نوځکه هغوی چې وچاته ښیراکوي نووایې چې خدای پاک دې دده پوزه په خاوروککړه کړي.

ددې مطلب دادی: چې دده عزت دلوړمقام څخه دذلت وځای ته وغورزوي.

نودپوزی مینځل دلویي اوغرورپریښودلواودخداي جل جلاله په
دربارکی دخپل نفس کوچنی کولوته اشاره ده. (المصالح العقلیه مخ ۲۳)

### دناستی دخوب په کوم صورت کښی اودس ماتیږي

پوښتنه دناستی دخوب کوم صورتونه اودس ماتونکی دی ؟
ځواب (۱): که بیله یوشي ته تکیه کولوویده شي اوونه نړیږی
اویاخودنړیدوپه وخت کښی رابیدارشی اودس نه ماتیږی
(۲) دهغه سجدی پرډول ویدیدل چی دسنت طریقی مطابق وی اودس
نه ماتوی (دسجدی سنت طریقه داده چی نس له ورنوڅخه بیل وی
همدارنګه څنګلی هم له اړخوڅخه بیلی وی )
(۳) که پوره کوناټی پرځمکه نه وی پراته تکیه یي لګولی وی اوویده
وی که پرخپل ورانه یابل شی باندی وی اودس ماتیږی نوځکه
پردووزنګنوکښینستل اوپرهغه تکیه وهل اودس ماتوی همدارنګه
چارزانوکښینستل پرورون یابل شی باندی تکیه ولګوی اودومره
ټیټ شی چی پوره کوناټی پرځمکه باندی لګیدلی نشی پاتی نوهم
اودس ماتیږی خوکه پره کوناټی پرځمکه باندی لګیدلی وی
مثلاً زنګنونه ودروی په لاسویي ونیسی یاپه جامه یابل شی سره یي له
ملا سره وتړی اوپرزنګنوسرکښیږدی ویده شی یاچارزانوکښینی په
ږیریوسره پرورنوتکیه وکړی دومره ټیټ شی چی کوناټی پرزمکه
باندی پوره ولګیږی نواودس نه ماتیږی.
(۴) که پوره کوناټی پرځمکه ولګیږی اوتکیه ولګوی دومره ویده
شی که دغه شی ځینی لری شی دی نړیږی په دغه صورت کښی



اختلاف دی پرنه ماتیدوباندی یي فتوی راغلی ده یعنی اودس نه
ماتیږی.
(احسن الفتاوی مخ۲۲ټوک دوهم بحواله ردالمحتارمخ۱۲۲لومړی ټوک فتاوی دارالعلوم مخ۳۵لومړی
ټوک ومظاهرحق مخ۲۳۵لومړی ټوک علم الفقه مخ۶۶لومړی ټوک )
مسئله: مراقبی په حالت کښی په چارزانوویدیدلواودس نه ماتیږی
داهغه وخت چی ویوشی ته یي تکیه نه وی وهلی.
(فتاوی دارالعلوم مخ۱۴۶لومړی ټوک بحواله ردالمحتارمخ۱۳۲لومړی ټوک اوعالمګیری
مصری مخ۱۲لومړی ټوک وامدادالفتاوی مخ۳۸لومړی ټوک)
مسئله: هغه څوک چی اودس یي کړی وی ویوشی ته تکیه ولګوی
اودومره ویده شی که هغه شی ځینی لری شی نودی به ونړیږی اودس
ئی مات دی. (شرح نقایه مخ۱۱اوهدایه مخ۹لومړی ټوک)
مسئله: یوازی ویدیدل اودس نه ماتوی بلکه په خوب کښي یوقسم
غفلت پیداکیږی چی دهوادوتلواونه وتلودرک سړی ته نه معلومیږی
نودغه خوب اودس ماتوي (څه وخت چی انسان ویدیږی نودهغه
بندونه سستیږی اودهواوتلواونه وتلوګمان غالبه کیږی. محمدرفعت
قاسمی غفرله
مسئله: که یوڅوک دناستی په دارنګه حالت کښی ووچی له خوب
څخه زنګیدی اوبیاونړیدی اودنړیدوپه حالت کی ئی سترګی راروڼی
کړی نودده اودس نه دی مات دهغه سړی هم اودس نه دی مات چی
دخوب په داسی حالت کښی وی چی له ځان سره دناستوخلګوخبری
زیاتی اوری اوپه پوهیږی. (درمختارمخ۸لومړی ټوک اردو)
مسئله: هغه خوب اودس ماتوی چی دسړی قوت ماسکه دارنګه ختم
کړی چی دده کوناټی دزمکی سره نه لګیږی قوت ماسکه وهغه قوت

ته وايي چې انسان دهغه په ذريعه سره دننه هواوتل بندوی اوپريوه اړخ ويديدل ځلورډوله خوب اودس ماتوی (۱)داړخ خوب (۲)بريوه شی باندی تکيه لګول (۳) پړمخی خوب (۴)چپه ويديدل ؛په دغه ځلوروصورتونو کښی قوت ماسکه نه پاتيږی که دارنګه خوب ووچی هغه قوت ماسکه نه ختموله نو اودس نه ماتيږی که څه هم دغه کس په لمانځه يابی له لمانځه کښی قصدا ويده شوی وی.

درمختارمخ۷لومړی ټوک مشکوة مخ۸۳لومړی ټوک

**په قهقهه (په زوره خندا)سره دجنازی لمونځ دختميدواواودس نه ماتيدووجه**

پوښتنه : که اودس لرونکی سړی په لمانځه کښی په زوره وخاندی اودس يي ماتيږی اودجنازی په لمانځه کښی په زوره خنداکولوسره لمونځ خرابيږی او اودس نه ماتيږی ددی څه وجه ده اوحکمت پکی څه دی ؟

ځواب : قياس عقلی خودادی: چی په خنداقهقهه سره اودس هيڅ کله بايدنشی مات خودنبی کريم ﷺ څخه ثابته شويده چی نبی کريم ﷺ ويوسړی ته په خنداقهقهه کولوسره داوداسه اولمانځه راګرزولو حکم وکړنوځکه پرمسلمانانو حکم منل ضروری شوو که څه هم دده په ناقص فهم کښی ددی حکمت رانشی خوڅه وخت چی داحکم دقياس ظاهری څخه خلاف دی نوله دی کبله پرکوم ځای چی واردشوی دی پرهغه ځای پريښودل کيږی پربل ځای باندی داوداسه دماتيدوحکم نه کيږی که څه هم په دغه کښی قهقهه کول په نسبت وهغه بل ته ډيره بده ده دييلګی په توګه دجنازی په لمانځه کښی خنداقهقهه کول داداصولو قاعده ده چی کوم حکم نه قياسيږی هغه له خپل ځای څخه



بل ځای ته نه بيول کيږی. (فتاوی دارالعلوم مخ ۱۴۸ لومړی ټوک بحواله هدايه فصل نواقض الوضؤمخ ۳۶لومړی ټوک تفصيل وګوری درمختاراوردومخ۱ الومړی ټوک )

**په قهقهه اوقی سره داودس ماتيدوراز**

بهيدونکی وينی زياتې قی بدن خرابوی اودنفس دمردارولوشی دی اوپه لمانځه کښی په زوره خنداکول يوجرم دی چی دهغه کفاره راوړل پکارده که ددغه شيانوڅخه نبی کريم ﷺ داودس کولوحکم وکړی هيڅ عجيبه نه ده دخنداقهقهه جرم ځکه شته چی په لمانځه کښی قهقهه دنفسياتی پليدی له کبله وی چی دهغه دلری کولولپاره اودس کول لازم شو. (المصالح العقليه مولاناتهانوی مخ ۳۸واسرارشريعت )

**دخنداپه اړوندمسئلې**

مسئله: که په لمانځه کښی په دومره زورسره وخندل شی چی دهغی خندااوازخپله هم واوری اوله ده سره يوځای خلک يي هم واوری لکه لويه خنداچی ټوله يي واوری په دغه سره هم اودس ماتيږی اوهم لمونځ فاسديږی که اوازخپله واوری اونوريي نه واوري که ډيرزيات نژدی خلک يي واوری نولمونځ فاسديږی اودس نه ماتيږی اوکه په خندا کښی صرف غاښونه سپين کړی شی اوازبالکل نه راووزی نونه اودس ماتيږی نه لمونځ فاسديږی همدارنګه که کوچنی هلک يا کوچنۍ انجلۍ چی تراوسه پوری لوی شوی نه وی په زورسره په لمانځه کښی وخاندی ياپه سجده تلاوت کښی بالغ وخاندی اودس

يې نه ماتيږي هغه سجده اولمونځ فاسديږي چې په هغه کښې وخندل شي.

(بهشتي زيورمخ ۵۲لومړی ټوک بحواله عالمګيری)

مسئله: دجنازې اوسجدې تلاوت په لمانځه کښې خنداقهقهه اودس نه ماتوي بالغ وي اوکه نابالغ وي. (منيه مخ۴۷باب ماينقض الوضوء)

مسئله: دبالغ په خنداکې داشرط دی چې خندابه درکوع اوسجدې په لمانځه کښې راغلې وي (که څه هم هغه خنداترډيره پورې نه وي )په سجده تلاوت اودجنازې په لمانځه کې په خنداقهقهه سره سجده اود جنازې لمونځ باطليږي خواودس نه ماتيږي اوکه دلمانځه دوتلوپه نيت قصدا خنداقهقهه وکړي اودس خوماتيږي ليکن لمونځ نه فاسديږي يعنی لمونځ صحيح کيږي داحنافوپه مذهب دسلام ګرزولوپرته په بله طريقه هم لمونځ ختمولای شي. (کتاب الفقه مخ۱۴۳لومړی ټوک اوعلم الفقه مخ۱۷۰ احسن الفتاوی مخ۲۴ټوک دوهم بحواله ردالمحتار)

داډول عمل کول ښه نه دی ځکه چې لمونځ يوعبادت دی اوداطريقه مناسبه نه ده. مولانارفعت قاسمي

مسئله: دخندادرې قسمونه دی (۱)خنداقهقهه چې بل يې هم واوري (۲)ضحک چې خپله يې واوري بل څوک يې نه واوري (۳)تبسم چې مطلق اوازنه وي پکې يعنی غاښونه سپين کړي (چې دې ته په اوردوژبه کښې مسکراناهم وايي )په خنداقهقهه سره اودس اولمونځ دواړه له منځه ځي په ضحک سره لمونځ فاسديږي په تبسم سره نه لمونځ فاسديږي اونه اودس. (درمختاراوردومخ۱۱لومړی ټوک)



مسئله: بالغ سړی درکوع اوسجدې په لمانځه کښې په زوره وخندل چې دهغه لپاره ده په جلاتوګه اودس ياتيمم وهلی وی بياهغه په دغه لمانځه کښې حقيقتاوی ياحکماوی دحکماصورت دادی چې دلمانځه کولوپه وخت کښې ده ته څه شی ورپيښ شي چې په هغه سره اودس مات شونولمونځ يې په پټه خوله پريښنودی داؤداسه کولولپاره ولاړی چې اودس وکړی اوپاته لمونځ پوره کړی اودس يې وکړراروان شوپريوخبره يې په زورسره وخندل نودلته ګوادحقيقتا لمانځه په حکم کې نه دی بلکه په حکمالمانځه کی دی ځکه چې پر مخکې لمانځه باندې بنأوی نوپه دغه دواړوصورتوکښې ددغه لمونځ کونکی اودس ماتيږي اوپه زوره خنداوهغه ته ويله کيږي چې هغه دده سره يوځای ملګري واوري.

مسئله: که دمقتدی امام په زورسره وخندل بيامقتدی په زوروخندل که څه هم هغه مقتدی مسبوق وی نوپه دغه حالت کښې دمقتدی اودس نه ماتيږي له دی کبله چې امام څه وخت په زوره وخندل نولمونځ باطل شواوس چې مقتدی په زوره وخندل نودده خنداد لمانځه څخه خارج موجوده شوه اوله لمانځه څخه خارج په خندا اودس نه ماتيږي.

مسئله: که امام په لمانځه کښې قصداخبری وکړی اووروسته مقتدی په زورسره وخندل دمقتدی اودس نه ماتيږي.

مسئله: دسلام ګرزولوپه وخت کښې قصداخنداقهقهه وکړل شي دقصدا توری ځکه يادکړل شوی دی چې خروج بصنعه يعنی په خپل عمل سره دلمانځه څخه راوتل لمونځ نه باطلوی مګراودس ماتيږي لمونځ ځکه نه باطليږي چې دلمانځه په اخرکښې خنداقهقهه موجود:

شوه اوکوم چې داوویل شوچې دسلام دګرزولوپه وخت کښې امام خنداقهقهه وکړه بیامقتدي خنداوکړه نواودس نه ماتیږي خوکه امام قصداخبرې وکړې ددې وروسته مقتدي په زورسره وخندل نودمقتدي اودس نه ماتیږي دلته یي داوښول چې دخندااوخبرو ترمنځ فرق شته خبرې لمونځ ختموي نوځکه څه وخت چې په دغه صورت کښې طهارت (پاکي) ختمه نه شوه نودمقتدي لمونځ نه فاسدیږي اوقهقهه دننه په لمانځه کښې راغله اوڅه وخت چې خندا قهقهه په لمانځه کې راشي اودس ماتوي په خلاف دلومړي صورت چې امام خنداقهقهه وکړې قصدا نوددې څخه پاکي ختمیږي نواوس په دغه حالت کښې دمقتدي خنداپه لمانځه کښې نه راغله نوځکه په دغه دده اودس نه ماتیږي. (کشف الاسرارترجمه درمختارمخ۱۲لومړي توک اوعلم الفقه مخ۶۵لومړی توک)

## په نس کې ګړهاری راتلل یاهوابندول

مسئله : داوداسه کولوپه وخت کښې یالمانځه کولوپه وخت کښې هوانه وباسي بلکه بنده یي کړي نواودس نه ماتیږي اولمونځ صحیح کیږي ځکه چې دهواوتل اودس ماتوي.

(فتاوی دارالعلوم مخ۱۴۶لومړی توک بحواله ردالمحتارمخ۱۲۶لومړي توک)

دلمانځه په وخت کښې فکرکول لمونځ مکروه کوي. محمدرفعت قاسمي

مسئله: که دهوادوتلویقین وی خواوازیابدبویي وکړي یانه اوهغه سړی معذورهم نه وي نواودس دوهم ځل پکاردی اوکه خاص شک وي لږڅه بنوریدل وي نواودس نه ماتیږي لمونځ صحیح ده.

(فتاوی دارالعلوم مخ۱۴۸لومړی توک بحوارله عالمګیری فصل ثاني سنن وضؤمخ۸لومړي توک)



مسئله: که په نس کښې له ګړګړڅخه شک پیداشي نوپه دغه ډول شک سره اودس نه ماتیږي ترڅوچې دهوادوتلویقین نه وي اواز واوري یابدبویي محسوس شي غرض دا چې یوډول یقین یي راشي چې هواووتله ترڅوپورې چې شک وي اودس نه ماتیږي لمونځ صحیح ده. (الجواب المتین مخ۱۰ ومظاهرحق ۳۳۲لومړي توک فتاوی رشیدیه مخ۲۸۳لومړي توک)

## په هواوتلوولې اودس ماتیږي ؟

پوښتنه : مسئله: دادَه: که اودس دهواوتلوله کبله مات وي نوصرف اودس دي وکړي دامعلومول دي چې له کوم ځای څخه هواتله هغه ځای خونه مینځل کیږي ددې سره دې اودس وکړل شي څه وجه ده ؟

ځواب : ددې وجه نبی کریم ﷺ نه ده فرمائلې یوازې داوداسه حکم یي کړی دی وچاته دااختیارنشته چې ددې وجه وپوښتي دغه امرتعبدي دی. (فتاوی محمودیه مخ۱۲۵توک اووم بحواله هدایه مخ۸لومړي توک)

دهواوتلوڅخه دبدبوي له کبله دننه دنس حالت ته یوقسم مرداري اوضعف ورځي اودفرشتوڅخه لرې والی راځي اوشیطان اوپیریان پرده پاندې راګرزي ددې څخه وروسته داوداسه کولوحکم وشوځکه چې په اوداسه سره مردارې پلیدي اوضعف لرې کیږي اوله فرشتو سره نژدې کیږي اوله شیطانانواوبدوڅخه لرې کیږي. (المصالح العقلیه مخ۳۵)

مسئله: هوااودس ماتوی خونجاست غلیظ نه دی بلکه پاک ده (څه وخت چی دمردارۍ سره نه ووځی )ددی په وتلوسره جامه ناپاکه نه ګرزی. (کشف الاسرار مخ ۸۳ توک دوهم)

مسئله: هرهغه شی نجاست غلیظ دی چی دانسان له بدن څخه ووزی اودس یاغسل واجب کړی (پرته له هوا) لکه بولی مذی ؛ودی ؛نوونه ؛په ډکه خوله قی بهیدونکی وینه حیض اونفاس دغه ټول نجاست غلیظ بلل کیږی پرته دشهیدله وینوچی پربدن یي پرتی وی دغه پاکی دی. (کشف الاسرار مخ ۸۴ توک دوهم)

**ایاپه رګ کښی پیچکاری لګول اودس ماتوی**

مسئله: درګ په پیچکاری کی ددی معلومول چی ستن ورګ ته ورسیده ذریعه یي خاص داده: چی په پیچکاری کی وینه راشی ترڅه وخته پوری چی په پیچکاری وینه نه وی راغلی دوائی وبدن ته نه داخلیږی په غوښه اوپوست کی پیچکاری لګول اودس نه ماتوی ځکه چی ددغه څخه په پیچکاری کښي وینه نه راوزی نوخالص په رګ کی پیچکاری لګول اودس ماتوی نه دغوښی اوپوست.

مسئله: که یوچادستنی سردبدن سره ونښلاوی اووینه راووته اوبهیدلی نه وه نواودس نه ماتیږی (کشف الاسرار مخ ۱۸ الومړی توک

مسئله: داوداسه دماتیدلولپاره وینه راوتل اوننه وتل برابردی نولکه څنګه چی په وینه راوتلوسره اودس ماتیږی همدارنګه په وینه ننه



وتلوسره هم اودس ماتیږی نوځکه درګ په پیچکاری سره اودس ماتیږی. (احسن الفتاوی مخ ۳۸ توک دوهم بحواله ردمحتارمخ ۱۲۷ الومړی توک).

مسئله: پیچکاری لګول ی په بدن کښی وینه درمل اوګلوکوز داخلول که ددغه شیانوداستعمال څخه یوشی له بدن څخه نه راوزی نواودس نه ماتیږی ځکه چی اودس ماتونکۍ شی مرداره (یعنی دمرداری په راوتلو سره اودس ماتیږی )اودلته نه ده موجوده شوی خوکه دپیچکاری څخه مقصدوینه را استل وی نوپه دغه سره اودس ماتیږی.
(نظام الفتاوی مخ ۴۴ الومړی توک بحواله عالمګیری مخ ۶ لومړی توک ودرمختارمخ ۹۰ لومړی توک)

مسئله: دپیچکاری یادبل شی په ذریعه وینه را ویستل که راویستل شوی وینه پراندازه دبهیدلووی اودس ماتوی په کبیری کښی راغلی دی چی ښکرلګول اوډیره وینه له تپ څخه ویستل که څه هم دتپ ښکاره دذری برابروینه نه ولګیږی په دغه سره اودس ماتیږی په تیروخت کښي دښکرلګولوشی (دپیچکاری پشان )سوری ښکروو او په نوی وخت کی پیچکاری هغه دښکردالی هغه شی چی وینه به په راوتله )بدل شوی صورت دی دژورې دوینی څښونکی حیوان )په ذریعه وینه راویستل کیږی ددی هم حکم همدغه دی.
(فتاوی رحیمیه مخ ۲۶۸ توک څلورم بحواله درمختارمخ ۱۲۹ الومړی توک وکبیری مخ ۱۳۴)

وریدی پیچکاری په رګ کښی دلګونکی پیچکاری
عضلاتی ؛په غوښه کښی دلګونکی پیچکاری
جلدی ؛په پوست کښی دلګونکی پیچکاری. مولانامحمدرفعت قاسمی غفرله

**ایادمخصوصی برخی سره لاس ښلول اودس ماتوی ؟**

مسئله : دمخصوص اندام سره لاس نښلول اودس نه ماتوي كه څه هم سره له شهوته وي (داهغه وخت چې مذي يابل شی نه راووزی )هغه كه ورغوی يادګوتودننه برخه ورسره ونښلوی.

مسئله: همدارنګه دبدن دنوروبرخوسره لاس نښلول يعنّی مسح كول اودس نه ماتوی لكه څنګه چې يوڅوک دخپلوبولوځای په لاس سره مسح کړی نواودس يې نه ماتيږی خوكه ګوته يايوبل شی دبيلګی په توګه په حقنه يعنی ددواوركولودنلكۍ سرداخل کړی اوهغه پكښی پټ شونواودس ماتيږی ځكه چې دغه عمل ددننه برخه كښي ديوشی اچول ياځينی راويستلوسره برابردي كوم چې اودس ماتونكی دی يعنی اودس ماتيږی .

منسئله: كه يوڅه برخه داخله وی خودننه نه وی پټه شوی نوڅه وخت چې راوايستل شی ورته كتل كيږی كه هغه لنده وه يادهغی بدبويي تله نواودس ماتيږی كه دارنګه نه وه بيااودس نه ماتيږی همدارنګه كه ښځی خپله ګوته ياپمبه يابل شی په خپل فرج كښی واچوی اولوند راوواتی نواودس يي ماتيږی كه دارنګه نه وو بيايي اودس نه ماتيږی.
(كتاب الفقه مخ ۱۴۰ اومظاهرحق مخ ۳۳۷ لومړی ټوک)

مسئله: دفرج سره په لاس لګولوكی اودس نه ماتوی په دی شرط چې مذی (داهغه اوبه دی چې وچاته په شهوت كتلوسره راوزی )اونه راووزی. (آپ كی مسائل مخ ۴۱ ټوک دوهم)

مسئله: دبدن اندامونه مسح كول خواه هراندام وی اودس نه ماتوی يعنی اودس يي نه ماتيږی دمسح كوونكي ياهغه چې مسح كيږی دواړه بربنډوی لكه څنګه چې يوڅوک اودس وکړی دخپلې ښځې سره



په يوه بستره كی پريوزی اودواړه هم بربنډوی اوديوه بدن له بل سره ولګيږی نوديوه اودس هم نه ماتيږی په دی شرط چې له دوو شيانو سره به نه و ی مخامخ شوی يوداچې مذی يابل به نه وی وتلی دوهم داچې يودبل فرجونه به نه وی سره لګيدلی په دغه صورت كښی دنارينه اودس ماتيږی كه ودته دذكرپورته كيدل راغله اوددواړو تر منځ دبدن دحرارت دمنع كولوهيڅ پرده نه وه ليكن دښځې اودس خالص دفرجوپه مښلوسره ماتيږی هغه وخت چې دسړی ذكرپورته شی.

مسئله: كه دوې ښځې دبربنډوالی په حالت كښی يوځای شوی اوددوی فرجونه يوله بل سره ولګيدل نوددواړواودس ماتيږی.
(كتاب الفقه مخ ۱۳۷ لومړی ټوک درمختارمخ ۱۲ لومړی ټوک)

مسئله: كه ددووبالغوانسانانوفرجونه يوله بل سره ولګيږی اودواړه نارينه وی يادواړه ښځينه وی يايونارينه اوبل ښځينه وی په دی شرط چې ترمنځ به يي داسی شی نه وی چې دبدن ګرموالی بندكړی يعنی يوله بله يي احساس نشی كولای نواودس يي ماتيږی.
(علم الفقه مخ ۶۷ تر ۶۹ لومړی ټوک آپ كی مسائل مخ ۳۸ ټوک دوهم)

مسئله دنارينه اوښځينه خاص اندام ته (فرج) ويل كيږی دشهوت په وخت كښی په دوی كی قدرتی ولاړيدل پيداكيږی ودی ته انتشار ويل كيږی ددغه په يوځای كيدوسره اودس ماتيږی په دی شرط چې دواړه فرجونه په انتشاركښی وی اوترمنځ يي يوجامه يابل شی نه وی اوبربنډسره يوځای شی كه څه هم مذې راونه وزی هغه كه ددوو ښځو يوځای كيدل وی اوكه يوی ښځی اونارينه ترمنځ وی. (درمختارمخ ۱۲ لومړی ټوک)

مسئله: داودس کولو وروسته دیوچاعورت (دبدن هغه برخه چې پټول یې ضروري دی) لیدل یاخپل عورت یې ښکارشویایې دبربنډوالی په حالت کښې غسل وکړی نودده اودس صحیح دی دوهم ځل داوداسه راګرزولوضرورت نشته لیکن بیله ضرورته دیوچاعورت لیدل یاخپل عورت ښکاره کول ګناه ده. (بهشتی زیورمخ۵۳لومړی توک اوفتاوی دارالعلوم مخ۱۴۳ الومړی توک)

مسئله: دنارینه یاښځې له عورت لیدلوڅخه یادعورت دلوڅیدلو څخه یادخپل عورت له لیدلوڅخه اودس نه ماتیږي. (علم الفقه مخ۷۰لومړی توک)

مسئله: داوداسه په وخت کښې زنګون ښکاره کول په اوداسه کښې هیڅ تاوان نه لري خودنورو مخته زنګون ښکاره کول ګناه ده.
(احسن الفتاوی مخ ۲۴توک دوهم فتاوی دارالعلوم مخ ۳۵لومړی توک)

مسئله: که نارینه یاښځینه په خپل خاص غړي کښې تیل یایوبله دوایا اوبه دپیچکاری په ذریعه واچولی اوهغه بیرته دباندي رااووتلی نوپه دغه سره اودس نه ماتیږي ځکه چې په خاص غړي کښې مرداري نه پاتیږي ددی لپاره چې دا احتمال نشي پاته چې دغه تیل یادواپرمرداری ولګیدله اوبیرته رااووتله. (علم الفقه مخ ۷۰لومړی توک)

**نارینه یاښځینه که په خپل خاص اندام کی پنبه اونورکښیږدي**

مسئله: سړی که ښځه یادښځې خاص ځای یادیوچامشترکه برخه یاخپله خاصه برخه مسح کړه نواودس یې نه ماتیږي همدارنګه دښځې اودس دنارینه یادنارینه په خاص ځای یادحصې مشترکې یادخپل خاص ځای په مسح کولوسره اودس نه ماتیږي.



مسئله: که سړی یاښځه په خپل خاص اندام کښې یوشي لکه جامه پنبه یانورشیان کښیږدي اومرداری له دننه څخه رااووزي دغه جامه لنده کړي نواودس نه ماتیږي په دی شرط چې دجامې پردباندی برخه به یې دمرداري هیڅ اثرنه وي یادغه جامه په خاص ځای کښې دارنګه کښیښودل شي چې دباندی نه ښکاریږي.

لومړی مثال یوسړي په خپله خاصه برخه کښې پمبه کښیږدی اوبولی یامنی دخپل خاص ځای څخه راغله پمبه یې لانده کړه خودپمبې هغه برخه کوم چې دباندی ښکاره کیږي نه وی لنده شوی یاپمبه په خاصه برخه کښې دارنګه پټه شوی وی چې له دباندی څخه بالکل نه ښکاریږي نوپه دغه صورت کښې که تو له پمبه لانده شی هم ددغه سړي اودس نه ماتوي (دوهم) یایوی ښځې په خپل خاص ځای کښې پمبه یاجامه کښیښودل اوبولی یاحیض له خپل ځای څخه دغه پمبه یاجامه لنده کړه خودجامې هغه برخه چې دباندی ښکاره کیږي نه وي لنده شوی یادغه پمبه یاجامه په خاص ځای کښي دارنګه پټه شوی وی چې له دباندی څخه نه معلومیږي نوپه دغه صورت کښې که تو له جامه یاپمبه لانده شی هم ددغه څخه نه معلومیږي نوپه دغه صورت کښې که تو له جامه یاپمبه لنده شي هم ددغې ښځې اودس نه ماتیږي.

مسئله: که یونارینه یاښځینه په خپله مشترکه برخه کښې پمبه جامه یابل شي کښیږدي اوددی پمبه هغه برخه چې دننه ده په مرداری ولړل شي خوهغه برخه چې دباندي ده لنده نه شي یاهغه هم لنده شي اوهغه په مشترکه برخه کښې دارنګه پټ شوي وی چې له دباندی څخه نه ښکاریږي نوپه دغه تولوصورتو کښې اودس نه ماتیږي.

(علم الفقه مخ ۷۱ لومړی ټوک)

مسئله: که یو سړی دیو حیوان سره بدکاری وکړی نو دغه سړی اودس ترهغه نه ماتیږی چی منی یا مذی نه وی راوتلی

مسئله: منی دخپل ځای څخه ووتل خو هغه خپل خاص ځای دومره ټینګ کړی چی منی دباندی بالکل نه راووزی نو اودس یي نه ماتیږی (او غسل نه واجبیږی)

مسئله: که دوو کسانو خپلی خاص برخی سره یو ځای کړی او ویي مو ښلی خو ترمنځ یي داسی پنډه جامه واقع وه چی یو دبل دبدن ګرموالی یي محسوس نه شوای کړای نو اودس نه ماتیږی دواړه نارینه وی یا دواړه ښځینه یا یو نر او بله ښځه وی یا نابالغ وی. (علم الفقه مخ ۷۲ لومړی ټوک)

## په فرجو کښی دګوتو داخلولو سره داوداسه حکم

مسئله: که یو څوک دخپلی ښځی په فرجو کښی ګوتی وهی نو دښځی اودس مات شو که پرګوتو جامه وی او که نه وی ځکه څه وخت چی ګوتی راوزی نو خامخا مرداری پرلګیږی او دمرداری راوتل اودس ماتوی خو که ګوتی په دننه فرج کی نه شی ولاړی نو اودس نه ما تیږی. (احسن الفتاوی مخ ۲۰ ټوک دوهم)

مسئله: که دلمانځه په دوران کښی دبولوله ځای څخه چینجی راووت. نو اودس ماتیږی لمونځ یي نه صحیح کیږی. (احسن الفتاوی مخ ۲۲ ټوک دوهم

## دفرج پرښکاره برخه ګوتی لګولو سره داوداسه حکم

پوښتنه: که یوښځه چی دنس ناستی په ناروغی اخته وی دلمانځه یا تلاوت په دوران کښی دیو څه ځنډ وروسته دننه پوست سره یي ګوته ولګوله ددی لپاره چی معلومه یي کړی چی ایا اوبه راوتلی دی کنه که یي په دغه طریقه سره معلومه کړه خو ځای بالکل پاک وو نو په دغه



صورت کښی دفرض په مسح کولو اولیدلو سره اودس ماتیږی که نه ماتیږی ؟

ځواب : په دغه عمل سره اودس نه ماتیږی خو په دننه سوری کی ګوته اچول اودس ماتوی ځکه چی دګوتی سره دننه مرداری هم راوزی .

(احسن الفتاوی ص ۲۶ ج ۲)

مسئله: که یو څوک داودس کولو وروسته پرخپل فرج لوندوالی وو ینی چی بهیږی نو هغه دی دوهم اودس وکړی او که وده ته نه معلو میده چی داڅه دی ؟یعنی خالص وهم وی په حقیقت څه شي نه وی نو سوچ دی نه پکی وهی شیطانی وسوسه دی وبولی باک دی نه په کوی.

(کشف الاسرار مخ ۱۸ لومړی ټوک)

## درنګ شوو نوکانو سره اوداسه حکم

مسئله: نن سبا چی ښځی پرنوکانو باندی رنګ کریم لګوی دهغه رنګ پرنوکانو باندی دپاته کیدو په وخت کی اودس اوغسل نه صحیح کیږی ځکه چی درنګ له کبله اوبه ونوکانو ته نه رسیږی په دغه صورت کی دښځو لمونځ نه صحیح کیږی او څومره لمنځونه چی یي کړی وی تر دغه مهاله دهغو راګرزول واجب دی. (احسن الفتاوی مخ ۲۶ ټوک دوهم نماز مسنون مخ ۷۲)

مسئله: دارنګه ښائیست حرام دی چی دشرعی فرائضو دصحت لپاره منع کونکی شیان وی چی وبدن ته اوبه نه پریږدی دهغو موجودګی په وخت کښی اودس اوغسل نه دی روا که څه هم دوینته په برابرو چ ځای پاتی شی نه یی اودس او نه هم غسل صحیح کیږی فقها حضرات وچ اخښل شوی اوړه داودس دصحت لپاره ئی منع کونکي بللی ده

سره له دی چی هغه دنوکانودرنګ په ځیر نه ټینګیږی اوددې ضرورت هم نشته نودنوک درنګولوایجازه به څنګه وشی ځومره لمنځونه چی یي درنګ لګولوپه وخت کښی کړی وی دهغوراګرزول واجب دی اوله دی سره سره دی توبه اواستغفار هم وغواړی. (احسن الفتاوی مخ۲۷ټوک دوهم بحواله ردمختار مخ۴۳الومړی ټوک)

مسئله: سرخی (چی پرشونډانولګول کیږی )یاپوډر یاکریم که ولګول شی اودس ورسره صحیح کیږی په دی شرط چی یومردارشی نه وی ورسره ګډکه دنوکانودرنګ په ځیر سرخی خورونیسی نواوداسه کولوپه وخت کښي دهغه لری کول ضروری دی (داهغه وخت چی اوبه لاندی نه پریږدی )

مسئله: وښځې ته داودس کولوپه وخت کې ټکری اړول ضروری نه ده خودښځی چی ځومره وس وشی بایدسرنکړی لوڅ خواودس صحیح کیږي. (آپ کی مسائل مخ۴۳ټوک دوهم)

مسئله: پرسریاپربیره دنکریځووچیدلوو روسته داودس دصحیح کیدو لپاره وچی نکریځی لری کول ضروری دی.(آپ کی مسائل مخ۴۲ټوک دوهم) دنکریځور نګ واوداسه اوغسل ته هیڅ تاوان نه رسوی. محمدرفعت قاسمی

## دسوزک دناروغی په دوران کښی داوداسه دساتنی تدبیر

پوښتنه:دیوی ښځی اوبه (دبولوله ځای څخه )خارجیږی اوودی ته دا نه معلومیږی چی دااوبه څه وخت راځی ترڅوچی ښځه دااوبه نه وینی کله لږبهیږی اوکله ډیری دلمانځه له پیل څخه مخکی دی وکتل هیڅ ناپاکی یي نه ولیده خودلمانځه لس دقیقی وروسته یي وکتل اوبه



راوتلی خوپه پوست کښی دننه وی اوله دی څخه پرپای جامه هیڅ ټپ نه وولګیدلی تقریبالمونځ دری پاوه جاری وو۲۵دقیقی وروسته یي ولیدل چی اوبه راوتلی وی نوایاپه دی صورت کښی لمونځ کیږی یانه ؟څه وخت چی ودی ته هیڅ خبرنه وی چی ایادغه دلمانځه په دوران کی راوتلی دی که له لمانځه څخه وروسته که له دی څخه لمو نځ نه وی صحیح شوی نوایاټوله لمونځ راوګرزوی که صرف فرض؟

ځواب : کوم وخت چی دلمانځه په منځ کښی داوداسه دماتیدویقین نه وی نولمونځ کیږی دغه ناروغه دی په خپل فرج کښی اسپنج کښیږدی دغه اوبه جذب کوی کوم وخت چی داسپنج پرهغه دباندنی برخه لوندوالی نه وی راغلی په دغه وخت کښی اودس نه ماتیږی. (احسن الفتاوی مخ۸ټوک دوهم)

مسئله: دډیروښځوسپینی اوبه همیشه بهیږی هغه که څه هم له یو وجې څخه وی اودس ماتونکی دی (ددی دراتلواووتلوڅخه اودس ماتیږی ) اوناپاکی دی خوکه دغه اوبه همیشه بهیدی نودغه ښځه معذوره بلل کیږی. (امدادالفتاوی مخ۱۱۲الومړی ټوک)

## دمواسیروچی کوم لندوالی دباندی نه شی راددی حکم

پوښتنه :دمواسیروداني څه وخت چی موادځینی ووزی دیوجال پشان کیږی په هغوی کي لندوالی وی خوبهیدونکی نه وی خوپه ولاړه اوناسته کی جامی ورسره لګیږی نوایاپه دغه صورت کی او دس ماتیږی اوجامی ناپاکه کیږی؟

ځواب : که لوندوالی له ټپ څخه دباندی ونه بهیږی نواودس نه ماتیږی اوجامی هم نه خرابیږی ځکه چی قاعده کلیه (عامه ) ده

فقهأحضرات ليکی (ماليس محدث ليس بنجس) کوم شی چی اودس
نه ماتوی هغه مردارنه دی نوکوم صورت چی تاليکلی دی په دغه کي
اودس نه ماتيږی اونه جامه ناپاکه کيږیَ.
(فتاوی دارالعلوم مخ۳۷ الومړی ټوک بحواله ردمحتارمخ ۱۳۰ لومړی ټوک باب نواقض الوضوء)

مسئله: که مواسيری سړی هغه غوښه چی دمواسيروڅخه په پاخانه
کښی پيداکيږی په لاس سره دننه کړه نواودس يي ماتيږی اوکه هغه
غوښه پخپله دننه شوه نواودس نه ماتيږی خوکه مرداری ښکاره وه
بيايي اودس ماتيږی همدارنګه که ديوچادبولوله ځای څخه چينجی
نيم رااووت اونيم دننه وو بياهغه بيرته پخپله ننووت نواودس نه
ماتيږی (داهغه وخت چی مرداری نشی ايله . (کشف الاسرارمخ۱۶ الومړی ټوک)

**دليونی داوداسه حکم**

مسئله: که ديوچاپه حواسوکښي ګډوډی راشی خودغه دحواسوګډ
والی دليوتتوب اوبی هوښی ودرجی ته نه ورسيږی نواودس يي نه
ماتيږی. (علم الفقه مخ۷۰ لومړی ټوک)

مسئله: پربی عقله ليونی بی هوښه اوپرهغه چی حواس ئی ګډوډ
شوی وی اودس واجب نه ده که اودس وکړی اودس يي نه ده صحيح
لکه څنګه چی يوفاترالعقله (چی عقل ئی ختم شوی وی )اودس
وکړی څه موده وروسته ددغه ناروغی څخه جوړشی په دغه اودس
سره لمونځ نه دی رواودليوتتياوهلی انسان هم دغه حکم د ی.(کتاب
الفقه مخ۸۲لومړی ټوک)

مسئله: بی هوښی اوليوتتوب اودس ماتوی (که يي اودس درلودی)
اوپه هغه نشه سره هم اودس ماتيږی چی دهغه له کبله دسړی په تګ



کښی کږوالی راشی دغه نشه که څه هم دبنګودخوړلوله کبله وی
(يادشرابوڅښلويانوروشيانوڅخه وی. (درمختاراوردومخ۰ ۱لومړی ټوک)

مسئله: که صحتمندشی دده لپاره غسل کول مستحب دی همدارنګه
بی هوښه سړی که صحتمندشی نوغسل کول مستحَب دی.

مسئله: که سړی بی هوښه شی يايی له ليوتتوب څخه عقل سلب شی
نوددغه سړی اودس ماتيږی که څه هم بی هوښی لږ موده وی
همدارنګه که سړی تمباکو (سګريټ چلم) يايوبل دنشی شی وخوری
اودومره نشه شی چی سم تګ نه شی کولای پښی يي دلته اوهلته
کيږی نواودس يي ماتيږی. (بهشتی زيورمخ۵۲لومړی ټوک بحواله عالمګيری باب
ماينقض الوضؤمخ۱۷ الومړی ټوک مظاهرحق جديدمخ۳۲۷لومړی ټوک)

مسئله: که داوداسه کولووروسته عقل ختم شی هغه که دميرګئ
ددوری يادليوتتوب يادبی هوښی څخه وی يادداسی شی له استعمال
څخه رامنځته شی چی دهغه له کبله عقل کارپريږدی دبيلګی شراب
بنګی يادنوروشيانوڅخه رامنځته شی همدارنګه ټول هغه شيان چی
سړی غافله کوی ماتونکی دی بلکه په خوب کی داسی شيان رامنځته
کيږی ياواقع کيږی چی اودس ماتيدوسبب وګرزی. (کتاب الفقه
مخ۱۳۱ ټوک لومړی)

دخوب له وجی سړی په خپل حال نه خبريږی. (محمدرفعت قاسمی)

مسئله: خالص دشراب څښلوڅخه اودس نه ماتيږی ترڅوچی نشه نه
راولی خوخوله په مرداريږی ځکه چی شراب مرداردی ددوی څښل
حرام دی. (فتاوی محموديه مخ۲۶ ټوک دوهم)

مسئله: هغه څوک چې همیشه شراب څښي ددغه کس له بدن څخه په خولوراوتلو اودس نه ماتیږي. (علم الفقه مخ ۷۲اومخ۷۳ لومړی توک او کتاب الفقه مخ۱۲الومړی توک)

مسئله: په ګناه کولوسره یاپه کافرکیدلوسره اودس نه ماتیږي.

مسئله: په چلم، بیړی، پان، اوسګریټ، سره اودس نه ماتیږي (په دی شرط چې دنشی له کبله یي عقل ولاړنشی) خودلمانځه څخه مخکښې دخولی بدبویي لری کول ضروری ده که دخولی څخه دچلم یا سګریټ یانوروبوي راځی نولمونځ مکروه ده.

(آپ کی مسائل مخ۴۱توک دریيم اوفتاوی دارالعلوم مخ۱۴۳الومړی توک)

مسئله: که یوچااودس وکړی اوله اوداسه وروسته یي دمسلمان وروړغیبت وکړاویایي درواغ وویل یاکافرشوددغه کس اودس نه ماتیږي. (علم الفقه مخ۷۳لومړی توک)

یعنی دغه دغیبت کونکی اودرواغجن اودکفرمختارولوڅخه وروسته بیرته ترمسلمانیدوپوری په هغه اوداسه لمونځ کولای شی په دی شرط چې په بله وجه یي اودس نه وی مات کړی. (محمدرفعت قاسمی غفرله الباری)

**په اوداسه کښې دګرمکو(دګرمۍ دانی )څخه داوبووتلوحکم**

مسئله: دګرمۍ اوباران په موسم کی زیات وخت دګرمۍ دانی راوزی اوپه ماتیدلوسره اوبه ځینی بهیږی که ددانی له ماتیدوڅخه اوبه خپله نه وبهیږی بلکه دلاس یادجامی دنښلیدوسره وبهیږی نواودس نه ماتیږي اوکه تپ له اوبوڅخه ډک شی اوبه پورته ځینی راغلی اوددانی دسوری څخه راووتي په نورځای کی خوری شوی خود ډکیدوله کبله لاندی ایله نه شوی نوددی له کبله په اودس ماتید لوکي



اختلاف ده راجح قول دادی چې اودس نه ماتیږي یعنی په دغه سره اودس نه ماتیږي. (احسن الفتاوی مخ۲۹توک دوهم بحواله ردالمحتارمخ۱۲۵الومړی توک)

مسئله: هغه دانی چې له خارش څخه پیداشوی وی ځینی وخت مسلسل اوبه ځینی بهیږي که دغه اوبه له خپل ځای څخه وبهیږي نواودس ماتوی (یعنی څه وخت چې دغه اوبه له خپل ځای څخه تیری شی دزیاتیدوله کبله نواودس ماتونکی دی اوپرکومه جامه چې ولګیږي هغه خرابوی. (فتاوی محمودیه مخ ۳۲توک دوهم)

**له اوداسه کولووروسته غوښه راووزی**

مسئله: که دیوی مشترکی برخی څخه یوجزراووزی چې وهغی ته کولمه وائی (دناروغی له کبله دبولوله ځای څخه راووزی )ایله ګیږي نوپه دغه سره اودس ماتیږي هغه که پخپله بیرته دننه شی اوکه دیو شی په وسیله سره ئی دننه کړي.

(بهشتی زیورمخ۱۳توک یوولسم بحواله شامی مخ۱۵۵علم الفقه مخ۶۵لومړی توک)

مسئله: داوبوچینجی یامنګوړچې زیات وخت په حیواناتوکښې پیدا کیږي یایوبل حیوان که دومره وینه وڅښي که هغه پربدن پریښودل شی نوپربدن بهیږي نواودس ماتوی. (علم الفقه مخ۶۵لومړی توک)

مسئله که یوچاجونک ولګاوی (هغه حیوان چې وینه څښي )اوپه جونک کښې دومره وینه راغله که هغه دپای له خواپری شی نووینه ځنی وبهیږي نواودس یي ماتیږي که دومره زیاته ئی نه وی څښلی بلکه لږئی څښلی وی نواودس نه ماتوی.

مسئله: که غماشی مچ یامنګوړوینه وڅښله نواودس نه ماتوی.

(بهشتی زیورمخ۵۱لومړی توک کبیری ۳۴)

وراځه( چې په سپې غوایا ګامیښه کښې پیداشي )دأوداسه په ماتو لوکی دمنګوړپشان دی منګوړیاوراځه که دومره لوی نه وی چې بهیدو ونکی وینه ځینی راوزی نوکه سړی وخوری نواودس نه ماتوی لکه دغماشي اومچ په خوړلوسره چې اودس نه ماتیږی ځکه چې په دوی کښې بهیدونکی وینه نه وی. محمدرفعت قاسمي

## په اوداسه کښې ددانوپه اړوندمسئلې

مسئله: که یوڅوک هغه خورچې پردانه برسیره دی ددانی څخه واړوی اوله هغې چې لاندی کومی وینی اونوونه دی هغه ښکاره شی خوله خپله ځایه څخه نه وبهیږی بلکه پرخپل ځای باندی ولاړوی نواودس نه ماتیږی.

مسئله: که په دانه کی لوی ژورغاروی نوترڅوچې وینه یانوونه دننه په دانه کښې وی دباندی راشي خوپربدن نه وبهیږی تردغه وخته پوری اودس نه ماتیږی.

مسئله: که له دانی څخه پخپله وینه یانوونه نه راووزی بلکه دهغې په کښیکښلوسره راووزی بیاهم اودس ماتیږی داهغه وخت چې هغه وینه وبهیږی.

مسئله: که دیوچاله تپ څخه لړلړوینه راتله پردغه تپ باندی خاوره واچول شی اویائې په جامه سره وچه کړی بیاله دی وروسته لړلړ راوتله اوده وچوله همدارنګه یې څوځله دغه عمل وکړی ددی لپاره چې وینه نه وبهیږی نوکه په زړه کښې داورته معلومه وه چې که دغه نه وچیدلای نوبهیدله بیااودس ماتیږی.



(بهشتی زیورمخ۵۰ لومړی ټوک بحواله ردالمحتارمخ۱۷لومړی ټوک اوشرح تنویرمخ۲۵لومړی ټوک اوکتاب الفقه مخ۱۲۹لومړی ټوک)

مسئله: که دژوندی انسان له بدن څخه وینی اونوونه یابل ناپاکه شی راووتلونواودس ماتوی په دی شرط چې هغه شی دانسان له بدن څخه وڅیڅیږي اوله خپل ځای څخه وبهیږی و هغه ځای ته ورسیږی چې هغه ځای مینځل په اوداسه یاغسل کښې واجب وی.

مسئله: که دژوندی انسان له بدن څخه یوناپاکه شی ووتلوخودخپل ځای څخه ونه بهیدی خودارنګه ووکه هغه پرخپل ځای پریښودل شی نوضرورله خپل ځای څخه وبل ځای ته ځی نواودس ماتوی.
(علم الفقه مخ۶۵لومړی ټوک)

مسئله: که دبدن دیوبرخی څخه سپینی اوبه راووزی اودغه له راوتلو څخه انسان ته تکلیف وی هغه که په ښکاره یوتپ معلومیږی یانه وکه ددغه له راوتلو څخه تکلیف نه وی خوډاکټریاطبیب یې تجویز کړی اوپه یوطریقه سره یې معلومه کړی چې دغه نوونه دی اودیوتپ څخه راوزی بیاهم اودس ماتیږی. (علم الفقه مخ۶۶)

مسئله: دیوچاپربدن باندی دانه وی له هغه څخه وینه یانوونه راووزی له دی کبله یې پمبه پرلګولی وی پټی یې پرلګولی وی دننه لړلړوینه راووزی خودپټی له کبله دباندی نه راووزی که دومره وینی راوتلی چې نه بندیدلی دتپ له ځای څخه تیریدلی نواودس ماتیږی.
(فتاوی رحیمیه مخ۲۶۸ټوک څلورم بحواله کبیری مخ۱۳۰اوشامی مخ ۱۲۹لومړی ټوک اوعلم الفقه مخ۶۵لومړی ټوک)

## په اوداسه کښې دټپ په اړوندمسئلې

مسئله: که ديوچا ټپ وی له دغه ځخه چينجی راووت ياله غوږځخه راووت يادټپ ځخه يوڅه غوښه بيله شوه اوخپله ايله شوه اووينه نه وبهيده نوپه دغه سره اودس نه ماتيږی.
(بهشتی زيورمخ۴۹لومړی ټوک مظاهرحق مخ۲۲۷لومړی ټوک)

مسئله: که وټپ ته له اوبوځخه زيان رسيدی نوپرهغه دی دمينځلو پر ځای مسح وکړی.

مسئله: که له ټپ ځخه هميشه وينه بهيدله اوپه يوه وخت کښی هم نه دريدله نودهرلمانځه په پوره وخت کښی يوځل اودس کول کافی دی اوکه کله بهيده اوکله نه بهيده نوڅه وخت چی وينه راوزی اووبهيږی نودوهم ځل دی اودس وکړی. (آپ کی مسائل مخ۳۷ټوک دوهم)

مسئله: که له ټپ ځخه وينه راووتله په ټپ کښي ولاړه وه اوټپ هم دارنګه ټپ ووچی اوبووړته زيان رساوو نواودس په دغه صورت کښی نه ماتيږی. (علم الفقه مخ۷۱لومړی ټوک)

مسئله: که داوداسه پراندامو باندی ټپ وواوداسه وروسته که دهغه ټپ ځخه پوست (خور)لری کړل شواودس نه ماتيږی اونه ددغه ځای دوهم ځل دمينځلوضرورت شته که دپوست په لری کولوکښی تکليف وی که نه وی (علم الفقه مخ۷۲لومړی ټوک)

مسئله: که يوچابنکرولګاوو (يعنی دټپ يابل ځای ځخه يي وينه وکښله يايي يوځای مات شواووينه ووتله ياله دانوځخه ياپه ټوله بدن کښی له يوځای ځخه نوونه ياوينه راووتله نواودس ماتيږی خوکه دټپ په خوله کښی ودريده مخته نشوه زياته نواودس نه ماتيږی که په



برابری ديوی زری وبهيده بيااودس ماتوی. (بهشتی زيورمخ۵۰لومړی ټوک بحواله غنيه مخ۱۲۸)

مسئله: که پرټپ پټی ترل شوی وی اودوينی يادبل شی لوندوالی پرپټی ښکاره شونوپه دغه وخت کښی اودس نه پاته کيږی ځکه چی دغه لوندوالی دبهيدلوپرځای دی که دغه پټی نه وای نووينه بهيدله.
(کشف الاسرارمخ۴اورکن الدين مخ۶)

مسئله: که ديوچادارنګه ټپ ووچی هميشه به بهيدی اوڅه وخت چی به يي اودس وکړبل ټپ به پيداکيدی اوبهيدی به نواودس يي ماتيږی دوهم ځل دی اودس وکړی.
(بهشتی زيورمخ۵۴لومړی ټوک بحواله شرح البدايه مخ۶۷لومړی ټوک اوکتاب الفقه مخ۸۰لومړی ټوک)

مسئله: که دټپ ځخه وينه راوتله اوجامی ورسره نښتی خوبهيدلی نه نوپه يومجلس کښی راغلی هرواردجامي لګيدووينه دی اندازه کړی که داوينه دومره کيدله چی که جامه جذب نه وای کړی نوبهيدله نواودس ماتيږی که دومره نه وه نه ماتيږی که په يومجلس کی دومره وينه نه وه بلکه دمختلفو مجلسونومجموعه دومره شوه هغه اودس نه ماتوی يعنی په دغه سره اودس نه ماتيږی. (احسن الفتاوی مخ۲۸ټوک دوهم بحواله ردمحتارمخ۱۲۵لومړی ټوک)

مسئله: که دټپ له کښيکښلوياپرهغه باندی دزورراوستلوځخه لوندوالی (بهيدونکی) راووزی اودټپ له ځای ځخه وبهيږی نواودس ماتيږی اوکه راوواتی خوومخ ته نه وبهيدی بلکه په ټپ کښی يي دننه قرارونيوی نواودس په دغه صورت کښی نه ماتيږی غرض دادی چی بيله قصدزورپرټپ راوستل اوقصداکښيکښل سر

بددی اوکه خپله زورباندی راغلی اوبهیدونکی لوندوالی راووت کوم چی کښیکښل شی راووزی اووبهیږی نواودس ماتیږی.

(فتاوی دارالعلوم مخ۱۳۷ لومړی ټوک بحواله ردمحتارمخ۱۲۷ لومړی ټوک)

**په اودسه کښی له سترګی څخه داوبوراوتلوپه اړوند مسئلی**

مسئله: دتیزی روښنائي دلمردشعلودپیازودکوټلواوپه لمانځه کښي دټوخی له بندولوڅخه له سترګو اوبه راوتل اودس نه ماتوی یعنی په دغه اوبوراوتلوسره اودس نه ماتیږی که دسترګی دخوږوالی په حالت کښی اوبه ځینی راوغورزیدلی یانوونه ځینی راووتل نوپه دغه صورت کښی اودس ماتیږی اوبیله خوږوالی اوتکلیف دسترګی څخه اوبه راوتل اودس نه ماتوی.

(فتاوی رحیمیه مخ۲۷۶ ټوک څلورم بحواله درمختارمخ۱۳۷ لومړی ټوک

مسئله: دپاک شی په راوتلوسره اودس نه ماتیږی لکه انبکی اوخوله.

(علم الفقه مخ۷۳ لومړی ټوک اودرمختارمخ۹۴ لومړی ټوک)

مسئله: که په سترګه کښی دانه ماته شی اودباندی نه راووزی نو اودس نه ماتیږی خوکه دباندی راووزی بیااودس ماتوی.

(شرح نقایه مخ۶۷ علم الفقه مخ۷۲ لومړی ټوک)

مسئله: که دیوچاپه سترګه کښي دننه دانه وه اوماته شوه یاهغه خپله ماته کړه اواوبه ئي ونه بهیدی په سترګه کښي خوری شوی دباندی نه راووتی اودس نه ماتیږی اوکه دباندی راووتی بیااودس ماتیږی.

(بهشتی زیورمخ۰۰ دلومړی ټوک

مسئله: هغه اوبه چی دسترګی څخه وغورزیږی ترڅوچی په دغه اوبو کښی تغیرنه وی راغلی دبیلګی په توګه په دغه کښی سوروالی یابل رنګ نه راغلی بلکه پاکی اوبه وی په دغه اودس نه ماتیږی اومرداری هم نه ده.



(فتاوی دارالعلوم مخ۱۴۴ لومړی ټوک بحواله ردمحتارمخ۱۳۷ لومړی ټوک آپ کی مسائل مخ۳۷ ټوک دوهم اوفتاوی رشیدیه مخ۲۸۳ ټوک لومړی)

مسئله: ددردله کبله که له سترګو څخه اوبه راووزی په دغه سره اودس ماتیږی. (فتاوی دارالعلوم مخ۱۴۱ لومړی ټوک)

مسئله: درانجی دتیزی یادهغه دلګولوڅخه کومی اوبه چی دسترګ څخه راووزی اودس نه ماتوی. (فتاوی دارالعلوم مخ۱۴۲ لومړی ټوک بحواله ردمحت مخ۱۳۷ لومړی ټوک کتاب الطهارات)

مسئله: دنزلی له کبله که ترسترګواوبه بهیدی اودس نه ماتوی اوک دسترګوڅخه اوبه دیوټپ له کبله بهیدی خوهغه ټپ ښکاره معل میږی یادیوطبیب دمعائني په وجه معلوم شی نودغه ټپ څخه او وتل اودس ماتوی. (بهشتی زیورمخ۵۲ لومړی ټوک تفصیل وګوری فتاوی دارالعل مخ۱۳۵ لومړی ټوک اوشامی مخ ۱۳۷ لومړی ټوک)

**په اوداسه کښی دغوږواوغاښ په اړوندمسئلې**

مسئله: که دیوچاپه غوږکی دانه ماته شی ترڅوچی وینه یانوونه دن په غوږ کښی پرهغه ځای باندی وی چی وهغه ځای ته اوبه رسول غسل کښی فرض نه وی تردغه وخت پوری اودس نه ماتیږی او پرداسی ځای باندی راغلی چی دهغه ځای مینځل په غسل کښ فرض وو نواودس ماتوی. (بهشتی زیورمخ۵۰ لومړی ټوک بحو ردمحتارمخ۱۷ لومړی ټوک اوشرح تنویرمخ۲۵۰ لومړی ټوک اوکتاب الفقه مخ۱۲۹ لوم ټوک)

مسئله: دیوچاغوږ دردکوی اودغوږ څخه اوبه راوزي نودغه اوبه چې دغوږو څخه بهیږي پلیتی دی که څه هم دانه ښکاره نه وی بس د دغو له وتلوسره اودس ماتیږي داهغه وخت چې دغوږ دسوری څخه راووزی وهغه ځای ته ورسیږي چې دهغه مینځل په غسل کی فرض وی.

مسئله: همدارنګه که له نو څخه دردپه حالت کښی اوبه راووتلی اودس ماتوی. (بهشتی زیورمخ۵۲لومړی ټوک بحواله درمختارمخ۱۷لومړی ټوک)

مسئله دغوږ څخه په خیری راوتلوسره اودس نه ماتیږي خوکه دغوږو څخه بهیدلی یایي په غوږ کښی ګوته واچوله اوګوته له اوبو سره ولګیده نوپه دغه دواړوصورتوکی اودس ماتیږي اودغه او به مرداری هم دی. (آپ کی مسائل مخ۴۳ټوک دوهم)

مسئله: که پرغوږ یاسترګه باندی دردوی اوپه تکلیف وی په دغه وخت کی دسترګویاغوږو څخه اوبه راووتلی اووهغه ځای ته ور سیدی چې دهغه مینځل په غسل کښی واجب وی نوپه دغه سره اودس ماتیږي اوپرته له نوی اودس کولولمونځ نه صحیح کیږي که څه هم لمونځ یي کړی وی نوددغه لمونځ راګرزول واجب دی اوکه څه درداوتکلیف نه وی اوبه ځینی راووتلی نواودس نه ماتوي.

(فتاوی رحیمیه ص۱۲۸ج۷ددرمختارص۱۳۷ج۱په حواله)

مسئله: که چاکوم شئ په غاښ پري یاونیوی اوپرهغه دوینی اثروموندل شو نورخت یالاس به په غاښونوږدي ګوری به که پرهغه وینه نه راووزي نواودس نه ماتیږي. (علم الفقه مخ ۷۰ لومړی ټوک)



مسئله: یوچادغاښوخلال وکړی په خلال کښی یي دوینوسوروالی ولیدی یایی په غاښ سره یوشی ماتولو پرهغه شی باندی دوینو اثر معلوم شوخوپه لاړوکښی دوینوهیڅ اثراورنګ نوی ښکاره نوپه دغه صورت کښی اودس نه ماتیږي. (بهشتی زیورمخ ۵۰لومړی توک بحواله درمختارمخ۱۴لومړی توک اوکبیری مخ ۱۳)

مسئله: دغاښ څخه په وینوراوتلواودس ماتیږي په دی شرط چې دومره وینه به راوتلی وی چې دلاړورنګ به وسوروالی ته مائل وی یابه یي په خوله کښی دوینوخوندوی. (آپ کی مسائل مخ۳۷ټوک دوهم)

مسئله: که پرغاښوباندی پتی (خیري)راجمع شوی وی دغه له اوداسه څخه منع نه کوی لیکن دغسل څخه منع راولی. (فتاوی رشیدیه مخ۲۸۴لومړی توک)

مسئله: که یوسړی ډوډی، میوه یایوبل شی وخواړی اوپه هغه کښی دوینواثرولیدل شوکوم چې له ووری څخه راروانی وی نودغه سړی دی هلته ګوته کښیږدی که پرګوته وینی معلومی شوی نواودس ماتیږي اوداسی نه وی نواودس نه ماتیږي. (کشف الاسرارمخ۱۸)

مسئله: دتیغ په راکښلوسره اودس نه ماتیږي که څه هم بدبویه وی. (علم الفقه مخ۷۰لومړی توک)

## په اوداسه کښی دویښتانونوکانواونوروپه اړوندمسئلې

مسئله:داوداسه کولووروسته که نوکان پری کړل شی اودس نه ماتوی اونه اوداسه وراګرزولوته ضرورت شته اونه دهغه ځای ولندولوته ضرورت شته. (بهشتی زیورمخ۵۳لومړی توک بحواله شرح تنویر مخ۱۵۰ اوعلم الفقه مخ۷۳لومړی توک)

مسئله: په نوکانو کښې که څه هم خیرې وی اودس پرکیږي لیکن نوکان لویول دفطرت خلاف کاردی. (آپ کی مسائل مخ۴۳توک دوهم)

مسئله: که په نوک کښې اوړه وچ شوی وی نوترڅه وخته پورې چې نه وي مینځل شي یالرې نه شي اودس نه صحیح کیږي.

(شرح نقایه مخ۷۳لومړی توک درمختارمخ۱۹لومړی توک)

مسئله: کومې خاورې یاخیرې چې په نوکانو کښې وی اودس اوغسل ورسره صحیح کیږي بیله دې چې لرې یې کړي خوداهغه وخت صحیح کیږي چې دردوی اوبه لاندې شي. (امدادالفتاوی مخ۳۶لومړی توک)

مسئله: داوداسه کولووروسته په ویښتانویا نوکانوپرې کولوسره اودس نه ماتیږي همدارنګه په عطرو(خوشبویي)لګولوسره اودس نه ماتیږي. (آپ کی مسائل مخ۴۳توک دریم)

مسئله: داوداسه کولووروسته که دسر یادږیرې ویښتان پرې شي نوپه دې سره اودس اودسرمسح نه باطلیږي یعني ددغه ځای دوهم ځل مینځل نه دي ضروري. (علم الفقه مخ۳لومړی توک کبیری مخ۱۴۵)

**په اوداسه کښې دناړوبلغمواوزکام په اړوندمسئلې**

مسئله: ناړې یابلغم که له دارنګه شي سره یوځای وودبیلګې په توګه دخوړک له شي سره یادصفراً (ژړو)یادارنګه شي سره چې هغه په قې کښې راځي اوهغه هم پاک وی نوپه دغه صورت کښې که ناړې یابلغم ډیروي اوهغه شي لږوي اودومره نه وي چې په هغه سره خوله ډکیږي نواودس نه ماتیږي اوکه ناړې اوبلغم له هغه شي برابروي خوپه دواړوکښې یوهم دومره نه وی جی خوله په ډکیږي بیاهم اودس نه ماتیږي (علم الفقه مخ۷۲لومړی توک)



مسئله: په ناړواوبلغموراوتلوسره اودس نه ماتیږي که هرڅومره وي یعني که څه هم په خوله ډکه وي اودس نه ماتیږي.

(علم الفقه مخ۷۳لومړی توک اوفتاوی دارالعلوم مخ ۱۴۲لومړي توک بحواله ردمحتارمخ۱۲۸لومړی توک باب نواقض الوضوءاوبهشتی زیورمخ۵۲لومړی توک)

مسئله: که ناړې له وینوسره یوځای شوي اوراوتلي نوکوم یوچې غالب وی دهغه اعتبارکیږي یعني که ناړې غالبه وي اودس نه ماتیږي اوکه وینه غالبه وی اودس ماتوي. (شرح وقایه مخ۴۷لومړی توک)

مسئله: که له پوزې څخه وینه راوتله دپوزې ونرمۍ ته راغله نواودس ماتیږي (علم الفقه مخ۶۵لومړی توک) نرمۍ دپوزې هغه برخه ده چې مینځل یې په غسل کښې واجب دي. محمدرفعت قاسمی غفرالله له

مسئله: که دپوزې څخه وینې ووتلې خوونرمۍ ته ونه رسیدلې نو اودس نه ماتیږي. (علم الفقه مخ۷۰لومړی توک)

مسئله: که په ناړوکې وینې ښکاره شوې که وینې پرناړوکښې بیخې لږوي اودناړورنګ سپین یاوژړوالي ته مائل وي نواودس نه ماتوی اوکه وینې زیاتي وي یادناړوسره برابري وي اووسوروالی ته مائل وي نواودس ماتیږي. (بهشتی زیورمخ۵۰لومړی توک بحواله درمختارمخ۱۷لومړی توک)

مسئله: دبلغموقی اودس مطلقانه ماتوی. (درمختارمخ۵لومړی توک ترجمه اوردو)

مسئله: دپوزې په ذریعه چې کوم شي تیل یابل داسې نرم شي دماغ ته پورته شي اوهغه بیادباندې راووزي نوپه دغه سره اودس نه ماتیږي ځکه چې دغه دپاک ځای څخه راوتلی دي. (کشف الاسرارمخ۱۸لومړی توک)

مسئله: که یوچاپوزه ټکوهله (پاکه ئی کړه ) اوله دغه ځخه دختمي شوی وینی ټوټی راووتلی نواودس نه ماتوی اودس په نرموا وبهید و نکو وینوسره ماتیږی.

مسئله: که یوڅوک په پوزه کی ګوته واچوله څه وخت چی یي راوایستله نودوینواثروراباندی ښکاری دی هغه وینی بس دومره وی کوم چی پرګوته لګیدلی وی لیکن بهیدلی نه وی نوپه دغه سره اودس نه ماتیږی. (بهشتی زیورمخ۵۰لومړی ټوک بحواله درمختارمخ۱۷لومړی ټوک اوشرح تنویرمخ ۲۵۰ لومړی ټوک اوکتاب الفقه مخ ۱۲۹لومړی ټوک)

مسئله: په زکام یابلغم یاخرابه پوزه کښی ټوټه (یوځای شوی ) وینه راځي دغه وینه اودس ماتوی. (فتاوی محمودیه مخ ۳۹ټوک نهم)

مسئله: کومی اوبه چی له سترګوغوږ اوبل ځای ځخه دتکلیف په وخت کښی راشی دغه ټولی اودس ماتونکی دی. (آپ کی مسائل مخ۸۵ټوک دریم)

مسئله: دنزلی اوزکام له کبله چی کومی اوبه له پوزې ځخه بهیږی دغه اوبه ناپاکه نه دی ځکه چی دیوټپ ځخه نه راووزی نه دیوټپ سره نښلی همدغه وجه ده چی په دغه اوبوسره اودس نه ماتیږی. (آپ کی مسائل مخ۸۵ټوک دریم)

مسئله: دسترګوپاکی اوبه اودزکام اوبه اودس نه ماتوی ځکه چی پوزه اوسترګی دخولی په شان اصل دلوندوالی ځای دی په خوله کښی که ټپ وی ترڅوچی یقین نه وی راغلی چی دغه نوونه یاوینی دی اودس نه ماتیږی په خالص ناروسره اودس نه ماتیږی که څه هم دیوعارض له کبله ناری ډیری بهیږی داغه حکم دپوزی غوږزکام اودسردرد دی دډاکټرانو دتحقیق ځخه معلومه شوی ده چی



دسترګواوبه کوم چی پاکی اوبه دی اودزکام داوبودټپ سره یي هیڅ اړه نشته. (احسن الفتاوی مخ۲۱ ټوک دوهم بحواله ردمحتارمخ ۲۲۳لومړی ټوک)

مسئله: دپوزی ځخه په وینوراوتلواودس ماتیږی. (آپ کی مسائل مخ۳۷ټوک دوهم)

**په اوداسه کښی دقی په اړوندمسئلې**

مسئله: قی که په ډکه خوله سره وی اودس ماتوی دډکی خولی قی ودی ته ویل کیږي چې انسان دهغه پربندولو قادرنه وی اوکه لږلږقی ووهی نوددی مجموعی ته اعتبارورکول کیږي. (درمختارمخ۵لومړی ټوک)

مسئله: که لږلږقی یي یوڅوځله وواهولیکن چی ټوله سره یوځای کړی نوخوله په ډکیږی نوکه په یوځل خواګرزیدوسره داسی لږلږ قی وواهی نواودس مات شواوکه په یوځل خواګرزیدوسره نه ؤ بلک لومړی ځل خواګرزیدل یې ختم شو یعنی طبیعت یې سم شوبیا یې دوهم ځل خواراوګرزیده اولږ قئ یې وواهی بیاچي کله داخواسم شوه نودریم ځل ئي بیاخواوګرزیده اولږ قئ ئی وواهی نواودس ن ماتیږي. (بهشتی زیور ص۵۲ج ۱ددرمختارص۱۷ج۱په حواله)

مسئله: که په قی کښی وینه راشی نوکه وینی نرمی اوبهیدونکی وې نواودس ماتیږی که لږوی که ډیری وی اوکه ټوټی ټوټي وینی وې اوخوله په ډکه شوه اودس ماتوی. (بهشتی زیورمخ۰۵لومړی ټوک بحواله درمختارمخ۱۷لومړی ټو)

مسئله: که یوپاک شی په قی کی راووزی لکه چینجی یابل داسی ش بیاهم اودس نه ماتیږی (په دی شرط چی په ډکه خوله نه وی )
(علم الفقه مخ۷۳لومړی ټوک)

مسئله: که ددماغ، نس، خولي څخه بهيدونکي وينه راووتله نو
اودس ماتوي هغه که په ډکه خوله سره وي که په تشه خوله سره.
(علم الفقه مخ۶۵ لومړی ټوک)

مسئله: دکوم شي په وتلوسره چي اودس ماتيږي هغه ناپاکه کيږي
اوپه کوم شي سره چي اودس نه ماتيږي هغه ناپاکه هم نه وي نوکه
لږوينی له ټپ څخه راووتلي خونه وبهيږي يالږقي ووهي خوپه ډکه
خوله سره نه وي په دغه قي کښي دخورک شي اوبه ياوچه شوی وينه
راووزی نودغه لږوينه اولږقي مردارنه دی که له جامي سره ولګيږي
نوددغه مينځل واجب نه دی خوکه يي په ډکه خوله سره قي وواهوا
ووينی له ټپ څخه وبهيدی نودغه مرداري دی ددی مينځل واجب دی
که په ډکه سره قي ووهي ديولوښی سره دييلګي په توګه کټوری
ګلاس خوله ولګوی دخولي دمينځلولپاره اوبه واخلي نودغه لوښی
ناپاکه ګرزی ځکه چي بايد په لاسوسره اوبه راواخلي.
(بهشتی زيورمخ ۳ ۵لومړی ټوک کبيری مخ۴۹شامی ۱۴۵لومړی ټوک)

لوښی يابل شی دی و مينځي بيا دی استعمال کړی. محمدرفعت قاسمی

مسئله: کوچنۍ ماشوم چي شيدی قي کړی ددی حکم هم دغه دی که
په ډکه خوله سره نه وي نونه دی مرداراوکه په ډکه خوله سره وي
نومرداردی که پرجاموباندی ولګيږي بيله منځلوکه لمونځ ورسره
وکړی لمونځ يي نه صحيح کيږي. (دلومړنی حوالي په ډول)

مسئله: هغه قي چي په ډکه خوله سره وي دغه نجاست غليظه دی که
پرجاموباندی ديوه درهم په اندازه ولګيږي نومعاف دی که له درهم
څخه زيات وو بياجامی په مردايږي لمونځ نه په صحيح کيږي هغه



مرداري چي جسم لري په دغه کښي دروندوالی (يعني وزن) د اعتبار
وړده اوهغه مرداري چي نرم وی صورت نه لری په هغه کښی اندازی
ته اعتبارورکول کيږي يعنی دورغوی په اندازه پروانه لری له دغه
څخه زيات نه معافيږي. (فتاوی رحيميه مخ۲۶۶ټوک څلورم بحواله مراقي الفلاح مخ۴۹)

## داوداسه نه درلودلوپه اړوندمسئلی

داوداسه ماتيدلوپه حالت کښي چي په انسان کښي کوم شرعی حالت
پيداشي ودغه ته حدث اصغروائی (کوچنی بی اودسی)

مسئله: دحدث اصغرپه حالت کی لمونځ کول حرام دی که نفلی لمونځ
وی اوکه فرضی وی ددغه پنځووختولمونځ وی که داختريا جنازی
لمونځ وی.

مسئله: دبی اودستياپه حالت سجده لګول حرامه ده خوادتلاوت
شکراوکه کومه بله سجده وی.

مسئله: قرآن شريف ياهغه شی چي له هغه سره لګيدلی وی لکه هغه
جامي چي دقرآن شريف پرجلدلګيدلی وی دامکروه تحريمی ده که
دغه قرآن يائی جلدپه هغه اندامو سره مسح کړی چي په اوداسه کښي
مينځل کيږي اويائی په هغه اندامو سره مسح کړی چي دهغه مينځل پ
اوداسه کښی واجب نه وی لکه مټ؛ ياسينه؛ يانوريائي په داسی جام
سره مسح کړی چي هغه دده پربدن باندی وی لکه لستوڼی ؛لمو
؛پګړي؛دسمال ؛اوپټو ؛همدارنګه نور...

مسئله: که پرکاغذيابل شی باندی دقرآن کريم آيت ليکل شوی وی

نوددغه پوره کاغذمسح کول تحریمي مکروه دی هغه که هغه ځای مسح کړی کوم چې آیت پرلیکلی وی اوکه هغه چې ایات نه وی پر لیکلی.

مسئله: که دکاغذڅخه یابل شی څخه پرته پربل شی دقرآن آیت لیکل شوی وونودغه شی صرف هغه ځای مسح کول مکروه تحریمی ده پرکوم ځای چې آیت لیکلی شوی وی دهغه خالی ځای مسح کول روادی دبیلگی په توگه پرډبره یادیوال یاروپی باندی آیت لیکل شوی وی.

مسئله: دقرآن شریف څخه پرته نوروآسمانی کتابونو کی لکه تورات انجیل،زبور خالی دهغه ځای مسح کول مکروه دی پرکوم ځای چې لیکل شوی وی دخالی ځای مسح کول یې مکروه نه دي.

مسئله: که قرآن شریف په دارنگه جامه سره مسح شي چې هغه پربدن باندی نه وی یادجامې څخه پرته په بل شی سره مسح کړل شی لکه لرگی نومکروه نه ده.

مسئله: دبې اوسیاپه حالت کی دقرآن لیکل پریوکاغذه مکروه نه دی په دی شرط چې دغه کاغذبه نه مسح کوی نه لیکل شوی اونه خالی کاغذیعنی یوبه هم نه مسح کوی ځکه که څه هم پرکاغذباندی یوآیت ولیکل شی بیاهم دپوره کاغذمسح کول مکروه ده.

مسئله: له کاغذاونوروڅخه پرته پربل شی باندی لکه ډبره یابل شی باندی دقران شریف لیکل مکروه نه دی په دی شرط چې لیکل شوی قران شریف به نه مَسح کوی که څه هم خالي ځای مسح کولای شي.



مسئله: له یوه آیت څخه کم لیکل مکروه نه ده که څه هم پریوشی باندی یی لیکی.

مسئله: دحدث اصغریعنی داوداسه نه درلودلوپه حالت کښی دقرا ویل اووبل چاته ویل هغه که ورته گوری یانه گوری صحیح ده په دی شرط چې لاس به نه ورسره لگوی.

مسئله: ونابالغه کوچنیانوته دبی اودسی په حالت کښی قران شریف ورکول اودهغه مسح کول مکروه نه دی. (علم الفقه مخ ۸۰ لومړی توک)

مسئله: که دقران مجیدترجمه په بله ژبه کښی وی نوصحیح داده چې ددی هم هاغه حکم دی کوم چې دقران شریف دی. (بحرالرائق درمختار)

مسئله: دقران شریف دهغوآیاتونوچې منسوخ شوی دی حکم هم هغ دی کوم چې دقران څخه پرته دنوروآسمانی کتابونوحکم دی هغه ک پریوشی باندی لیکل شوی وی نوخالص دهغه ځای مسح کول مکرو دی پرکوم ځای چې لیکل شوی وی دتوله ځای مسح کول مکروه ن دی. (علم الفقه مخ ۸۱ لومړی توک)

مسئله: بیله اوداسه لمونځ کول سجده تلاوت دجنازی لمونځ دکعب طواف اوقران کریم لره لاس وروړل روانه ده

مسئله: وحائضی اونفاسی ښځی اوبی اودسه یعنی جنوب سر لپاره دقرآن شریف په شان تورات انجیل اوټول اسمانی کتابوته لا وروړل هم مکروه ده. (شامی مخ ۱۶۰ لومړی توک کبیری مخ ۶۰)

مسئله: که یوڅادخانه کعبی طواف بیله اوداسه وکړنوطواف خ صحیح کیږی امادغه عمل ئي حرام دی ځکه چې دطواف لپاره له ب اودسی څخه پاکیدل واجب دی. (کتاب الفقه مخ ۸۵ توک لمړی)

## داوداسه بیلابیلی مسئلی

مسئله: که دناخبرتیاله کبله دحیض په وخت کي طواف زیارت وکړی حج اداکیږی خوتوبه اودمغفرت غوښتنه باندی لازمه ده اواوښ یا غویي به ذبح کوی (یعنی وینه بهول باندی لازمه ده. (فتاوی رحیمیه مخ۵۲ټوک دوهم)

مسئله: که داوداسه په شروع کی بسم الله ویل هیرشی نوداوداسه په منځ کی په بسم الله ویلوسره سنت نه اداکیږی ځکه چی اودس یو عمل دی په خلاف له ډوډی په ډوډوی خوړلوکښی هره ګوله اوهر غوړپ جلاجلاعمل دی نوځکه دډوډی په منځ کی په بسم الله ویلو سره سنت اداکیږی. (نمازمسنون مخ۷۵کبیری مخ۲۲امدادالفتاوی مخ۴۱لومړی ټوک)

مسئله: په ژبه سره داوداسه نیت کول مستحب دی. (احسن الفتاوی مخ۹ټوک دوهم)

مسئله: ځینی خلک داوداسه مخکی اعوذبالله وایي ددی حکم نه دی شوی اودسنت خلاف دی. (نمازمسنون مخ۷۵)

مسئله: دیوه لاس په اودس کولوکي مي مکروه والی نه په روایت کی لیدلی دی اونه یوروایت ددغه واجبونکی ګرزی سره له دی چی ځینی اندامونه په دواړولاسونونه شی مینځل کیدالای هغه لکه دواړه لاسونه تربیریوپوری مینځل اودځینواندامو په مینځلوکښی په دواړولاسوسره تکلیف وی لکه دپښی مینځل چی په یوه لاس کښی یي لوټه وی (کوزه )(امدادالفتاوی مخ۳۳لومړی ټوک)

مسئله: بی له عذره په اودس کولوکښی دبل څخه کومک غوښتل نه دی پکار.(شرح نقایه مخ۹لومړی ټوک کبیری مخ۳۱ )



مسئله: له ښځی څخه په مچه اخستلوباندی( یعنی خپله ښځه ښکلول) اودس نه ماتوی ترهغه چی مذی نه وی راوتلی. (آپ کی مسائل مخ ۳۹ټوک دوهم)

مسئله: په چوتړوکښی دننه مرداری نه وی نوځکه له اوداسه وروسته په چوتړوا غوستلوسره اودس دوهم ځل نه لازمیږی. (آپ کی مسائل مخ۴۱ټوک دوهم)

مسئله: پراوردپخ شوی په خوړلوسره اودس نه ماتیږی.
(آپ کی مسائل مخ۴۱ټوک دوهم)

مسئله: داوښ دغوښوپه خوړلوسره اوهرهغه شی چی پراورباندی پخ شوی په خوړلویي اودس نه ماتیږی. (علم الفقه مخ۷۳لومړی ټوک)

مسئله: دګناه په کاروسره اودس نه ماتیږی خومکروه کیږی له همدی کبله دوهم ځل اودس کول مستحب دی. (آپ کی مسائل مخ۴۱ټوک دوهم)

مسئله: داوداسه په وخت کښي په سلام اودهغه په ځواب سره اوداسه ته هیڅ تاوان نه رسیږی دډوډی دخوړلوپه وخت کښی باي دسلام نه واچول شی پرډوډی خوړونکی دسلام ځواب واجب نه دی. (آپ کی مسائل مخ۴۴ټوک دوهم)

مسئله: واودس کونکی ته سلام اچول صحیح دی خوهغه وخت چی هغه په دعاویلوسره بوخت نه وی که بوخت وی بیامکروه ده.
(فتاوی محمودیه مخ ۲۳۰ټوک پنځم)

مسئله: داوداسه کولوپه وخت کښی دی داذان ځواب هم ورکوی اودس دی هم کوی. (فتاوی محمودیه مخ۶۴ټوک دوهم بحواله شامی مخ۲۶۷لومړی ټوک)

مسئله: دښځی وکوچنی ته په تی ورکولوسره اودس نه ماتیږی خوکه دلمانځه په وخت کوچنی تي وروی اوشیدی هم راووتلی نولمونځ

فاسیدیږی خوکه شیدی نه راووتلی لمونځ نه فاسیدیږی یعنی صحیح کیږی. (امدادالفتاوی مخ۴۱لومړی ټوک اوفتاوی دارالعلوم مخ۱۳۶لومړی ټوک)

مسئله: دهغه کوچنی بولی چی شیدی خوری ناپاکه دی له هغی جامی سره چی دغه بولی ولګیږی بیله پاکولولمونځ نه ورسره صحیح کیږی. (فتاوی محمودیه مخ۱۳ټوک دوهم)

مسئله: که ویښتان غوړشوی وی اواوبه پرتیری شی نوهیڅ تاوان نه لری. (امدادالمسائل مخ۴۳)

مسئله: که دیوچالاس یاپښی چاودلی وی اوپه هغه چاوده کښی یي موم (هغه نرم شی چی مچمچیانی یي له شاتوسره جمع کوی) یاروغن یادیودواڅخه یي ډک کړی اوددی په راکښلوکښی تکلیف وی نوبیله راکښلودی اوبه باندی وبهوی اواودس صحیح کیږی.
(بهشتی زیورمخ۴۸لومړی ټوک فتاوی دارالعلوم مخ۱۴۱لومړی ټوک بحواله ردمحتارمخ۹۵لومړی ټوک)

## بیله اوداسه وقران شریف ته لاس وروړل

مسئله: وړوره قرآن یادهغه ویوی برخی ته بیله اوداسه لاس وروړل یادهغه لیکل په څوشرطوسره روادی (لومړی) شرط دادی چی بیړنی حالت به وی دبیلګی په توګه قرآن شریف په اوبوکښی ډوبیږی یاپه اورکښی سوځل کیږی نوپه دغه وخت کښي وقرآن شریف ته بیله اوداسه لاس وروړل روادی (دوهم) شرط دادی چی قرآن شریف به په داسی پوښوکښی وی چی هغه ورسره نښتی نه وی لکه قرآن شریف چی په خلطه یاجامه چمړه یاکاغذاویاپه دسمال کښی نغښتی وی په دغه حالت کښی وقرآن شریف ته لاس وروړل یاپورته کول روادی خوپه کوم شی کښی چی بندوی اوهرهغه شی چی پیرودلوپه وخت



کښی بی له وضاحته له ده سره شامل بلل کیږی وذی ته لاس وروړل ناروادی که څه هم هغه دقرآن شریف څخه جلاوی هم پرداغه قول باندی فتوی ده (دریيم) شرط دادی چی دلاس وروړونکی به نابالغ وي اودلوستلوپه غرض لاس وروړي داحکم له زحمت اومشکل څخه دبچ کیدوپه غرض دی بالغ اوحائضه ښځه که استاذوی که شاګرد لاس وروړل ورته روانه دی (څلورم) شرط دادی چی دلاس وروړونکی به مسلمان وی که دغه شرطونه نشوموجودنووناپاکه اوبی اودسه سړی ته وقرآن شریف ته لاس وروړل یعنی دبدن په یوبرخه سره یي مسح کول روانه دی وقرآن کریم ته بې اودسه دقرآن شریف لوستل چي لاس نه وروړي په یادیاچي ورقی بل څوک خلاصوی جائزدی.

مسئله: وناپاکه (چی غسل باندی واجب شوی وی) سړی اوحائضی ښځی ته دقرآن تلاوت هم حرام دی.

مسئله: بیله اوداسه وتفسیرته لاس وروړل مکروه دی دتفسیرڅخه پرته ونورودفقهی حدیثواونوروکتابوته لاس وروړل روادی دغه دارنګه اموردی چی اجازه یي شوي ده. (کتاب الفقه مخ۷۸لومړی ټوک)

مسئله: بیله اوداسه فیته (کیسټ) ډکول اوهغه په لاس کښی رااخستل روادی ځکه چی په فیته کی خالص هوابندیږی کلیماتی یابل شی نه پکښی بندیږی په خلاف دکتاب لیکل په کتاب کښی کلیماتی جمع اوبندیږی نوځکه لیکل.

مسئله: بیله اوداسه اوهغه بیله اوداسه مسح کول روانه دی.
(نظام الفتاوی مخ۲۵لومړی ټوک بحواله فتاوی عالمګیری مخ۲۰لومړی ټوک کتاب الطهارات)

مسئله: دقرآن شریف وتیپ اوفتی ته لاس وروړل بیله اوداسه روادی

(احسن الفتاوی مخ۱۹ توک دوهم اوامدادالفتاوی مخ۱۴۴ لومړی توک)

بیله اوداسه دقرآن شریف وهغه ورقی ته لاس وروړل چی هلته دقرآن شریف آیت نه وی لیکل شوی لکه چی په قرآن کښی په پورتنی ورقه باندی آیت نه وی لیکل شوی مسح کول یې روانه دی بلکه جلد یعنی وقایه مسح کول هم روانه دی. (احسن الفتاوی مخ۱۹ توک دوهم بحواله ردمحتار مخ۱۶۰ لومړی توک)

ځکه چی دغه جلدونه ټول دیوه په حکم کی دی. محمدرفعت قاسمی غفرالله له

مسئله: په اخباریابل شی کی چی دقرآن آیت لیکل شوی وی خالص دهغه ځای مسح کول منع دی چیری چی آیت لیکل شوی وی ونوروځایو ته یې لاس وروړل روادی خوکه یوآیت ډیرکوچنی وی یعنی ترشپږو تورو هم کوچنی وی نودیوه قول مطابق پردغه دلاس ایښودلو جواز شته. (احسن الفتاوی مخ۱۹ توک دوهم بحواله ردمحتار مخ۱۶۰ لومړی توک)

مسئله: په تفسیرکی دقرآن پرته بل شی ډیروی نودغه تفسیرته بیله اوداسه لاس وروړل جائزدی خوچیري چي قرآن لیکل شوی وی هلته دی لاس نه لګوي دحدیثو کتابونه بیله اوداسه مسح کول روادی.

(احسن الفتاوی مخ۲۷ توک دوهم اوامدادالفتاوی مخ۱۴۵ لومړی توک اوفتاوی محمودیه مخ۲۶ توک دوولسم)

## دکتابودتجارلپاره بیله اوداسه وقران ته لاس وروړل

دکتابودتجارلپاره بیله اوداسه قرآن مسح کول په یوه طریقه هم نه دی روا په دسمال سره دی مسح کړی اوپه چاقو یاقلم سره دی ورقه واړوی اودی یې ګوری لاس دی نه وروړی اوپه کوم کتاب کښی چی یویادوه آیته لیکل شوی وی دغه بیله اوداسه ویل روادی خوځای دی نه مسح کوی پرکوم ځای چی آیت لیکل شوی وی. (امدادالاحکام مخ ۲۴۱ لومړی توک)



## دستکلی په لاس کول بیله اوداسه قران ته لاس وروړل

پوښتنه: دقرآن شریف دیادولولپاره هرګړی مسح کول راځی که هغه دستکلی په لاسوکړی چی هغه خاص دقرآن کریم دمسح کولولپاره جوړی شوی وی دی بیابیله اوداسه وقرآن ته لاس وروړلای شی کنه؟

ځواب: دستکله هم یوه اغوستل شوی جامه ده په دغه سره قرآن کریم مسح کول روانه ده بلکه په دسمال یابل شی سره مسح کول روادی کوم چی دبدن څخه بیل وی. (امدادالاحکام مخ۲۵۰ لومړی توک)

مسئله: بیله اوداسه اوبیله لاس وروړلو وقرآن ته قرآن ویل په یادلپاره دثواب رسولو ومړوته رواده په دی شرط چی ناپاکه به نه وی یعنی غسل پرواجب نه وی. (امدادالاحکام مخ۳۱۷ لومړی توک)

مسئله: قرآن حدیث اودخدای جل جلاله نومونه که په بله ژبه کښی لیکل شوی وی هغه هم واجب التعظیم دی یعنی تعظیم یې کول واجب دی. (امدادالاحکام مخ۲۴۳ لومړی توک)

مسئله: بالغ سړی که قرآن راواخلی نوبایدسره له اوداسه یې ووایي اوهغه چی نابالغه وی وهغه ته قران ویل بیله اوداسه صحیح ده بالغانوته که داوبوبرابرول سخته وی نوبیله اوداسه وقرآن ته لاس باید ورنه وړی بلکه په جامه یاقلم سره دی ورقه اړوی.

(فتاوی محمودیه مخ۲۶۷ توک شپږم او۲۴ لومړی توک)

مسئله: ونابالغه ته قران مسح کول یاهغه تخته مسح کول چی پرهغی قرآن لیکل شوی وی مکروه نه ده اوپه دی کښی هم څه تاوان نشته چی بالغ اواوداسه والاوکوچنی نابالغه بی اودسه ته یې ورکړی یادبی اودسه هلک څخه بالغه اواودس والا قرآن طلب کړی همدارنګه قرآن

پاک دضرورت په وخت کښې اخستل اوورکول روا دی هغه ضرورت
وکوچنیانوته قرآن وریادول دی ځکه چی په کوچنی والی کښې یادول
داسی دی لکه پرډبره چی یونقش ولیکل شی (په نابالغه باندی
هروخت اودس کول دوی. په تکلیف کی اچول دی اودبلوغ په
انتظارکی نه یادول دحفظ قرآن ومسئلی ته تاوان رسوی )نوځکه
دکوچنیانولپاره په قرآن مسح کولو کی اودس شرط نه دی هغه یې
بیله اوداسه مسح کولای شی. (کشف الاسرارمخ۵۰لومړی ټوک)
مسئله: بیله اوداسه قرآن مسح کول صحیح نه دی خوکه په دارنګه
جامو سره یې مسح کړی چی هغه له بدن څخه بیلی وی مثلاً په پټوسره
همدارنګه دقرآن کریم یادول بیله اوداسه روانه دی اوکه قرآن شریف
خلاص وی اوبیله لاس ورورلوورته وګوری ووایې نوصحیح دی.
(بهشتی زیورمخ۱۳لومړی ټوک بحواله شامی مخ۱۵۵لومړی ټوک)

## دمعذورپیژندنه اودهغه حکم

دایودلمرپه شان ښکاره خبره ده چی په شریعت اسلامی کی په ډیر
ښکاره ډول باندی داتصریح موجوده ده چی دده په حکم کښې هیڅ
سختی اوتکلیف نشته دالله تعالی فرمان دی:[وماجعل علیکم فی
الدین من حرج ]یعنی ددینی اوموروپرځای راوړلوکی پرتاسوهیڅ
سختی نشته هر هغه شئ چی په هغه کی سختی اوتکلیف وی پر
مکلف انسان باندی واجب نه دی په دغه کښې ددارنګه ناروغیو
ناروغان داخل دی چی دناروغی په حالت کی مجبورکیږی دبیلګې په
توګه دسوزک ناروغی چی ددی له کبله ټوله وخت یازیات وخت
دبولوڅاڅکی راووزی همدارنګه دمذی یانورومسلسل وتل ودغه



ناروغیوته سیلان ویل کیږی په دغه کښې هغه ناروغی هم داخله ده
چی پرله پسی دنس ناستی ناروغی وی یادمعدی ناروغی چی وهغه
ته پیچ (dysentery) ویل کیږی داهغه ناروغی ده چی دبولوله ځای
څخه وینی اونوونه راووزی په دغه اوهمدارنګه په نوروبیلابیلو
ناروغیوکې دپاکی یوه خاصه شرعی طریقه ده چی له دغه ناروغیو
سره مناسبه ده دحنیفیه وواحنافوپه اندددی په اړوندڅواموردی
(لومړی )دسیلان (پرلپسی بی اودسیا) پیژندنه (دوهم )ددی شرعی
حکم (دریيم )هغه امورچی دهغه پوره کول پرمعذوره انسان واجب
وی پیژندنه دسوزک دناروغی یوخاص کیفیت (ډول ) دی چی په هغه
کښې همیشه بولی راوزی یاهرګړی بادونه خارجیږی یاحائضه
(دښځودناروغی وینه )وی یایی همیشه پیچ اودارنګه نوری
مشهوری ناروغی وی کوم شخص چی ددغوناروغیوناروغه وی
وهغه ته معذورویل کیږی لیکن معذورهغه وخت بلل کیږی چی
دفرض لمانځه ټوله وخت داوداسه دماتیدلوپه ډول تیرشی که بی
اودسیادفرض لمانځه وخت ټوله نه نیوی نوناروغه معذورنه بلل
کیږی همدارنګه که یوه فرض لمانځه ټوله وخت بیله بی اودسی حالته
نشی تیرنودغه دعذرڅخه نه بلل کیږی خوکه دعذرکیفیت ورپیښ وی
هغه که دلمانځه دوخت په هره برخه کښې چی وی عذربلل کیږی لکه
څنګه چی دماپښین دلمانځه له شروع څخه دبولوناروغی پیښه شی
نودماپښین دختمیدوپوری دی معذور بلل کیږی اودغه معذوری
روانه پاته کیږی ترڅوچی دلمانځه پوره وخت نه شی تیریعنی
دماپښین دوخت دتیریدلوڅخه وروسته دمازدیګر وخت راغلی

اوهغه پوره تیرشواودبولوڅاڅکي رانشي که دیوسړی عذردماپښین دوخت له پیل څخه بیاترتمامیدوپوري جاري وو اودمازدیګردوخت په یو ه برخه کښي هم داعذرجاري وی اوبیابندشي که څه هم په دغه وخت کښی یوڅاڅکی دبولوراشي په دغه ټوله وخت کښي معذور بلل کيږی یعنی دغه ټول وخت دعذردی داحنافو په مذهب دمعذوردغه تعریف دی په دغه صورت کښي حکم دادی چي دهرلمانځه دوخت لپاره به اودس کوی اوپه دغه اوداسه سره فرض اونفل ټول کولای شي یعني په یوه وخت کښی هرقسم عبادت په کولای شی خوچي فرضي وخت تیرشي اودس هم ختم دی که یوسړی دعذردحالت له پیښیدوڅخه مخکي اودس دړلودی نودوخت دختمیدو له کبله یي اودس نه ماتيږی بلکه هغه وخت ماتيږي چي دعذرڅخه پرته په بله وجه سره یي اودس مات شي هغه لکه دهوا وتل دویني وتل له دغه تفصیل څخه  دابښکاره کيږی چي دمعذورسړی داودس دماتیدووجه دفرض لمانځه دوخت تیریدل دی که لمرراختلووروسته یي داختردلمانځه لپاره اودس وکړی اودماپښین وخت راغلی نواودس یي نه ماتيږی دغه اودس (چي داختردلمانځه لپاره شویدی ) چي په کوم وخت ښی شوی دی دفرض لمانځه وخت نه وو بلکه دارنګه وخت ووچي په هغه کی فرضي لمونځ نه وونود اختر دلمانځه په اوداسه سره چي کوم لمونځ کول وغواړی کولای ئی شي ترهغه وخته پوری چي دماپښین وخت ختم شي دماپښین دوخت دختمیدلوسره دستي اودس ماتيږی ځکه چي هغه دفرض لمانځه وخت دی خوکه یي دلمردراپورته کیدلوڅخه مخکي اودس وکړی



نودلمر دراختلوسره دستي اودس ماتيږی ځکه دفرض لمانځه (یعنی دسهار) وخت دلمرراپورته کیدلوسره دستي ختميږی همدارنګه که یي دماپښین له لمانځه کولووروسته اودس وکړی نودمازدیګردوخت په راتللوسره ئي اودس ماتيږی ځکه چي دماپښین وخت ختم شوی دی. (کتاب الفقه مخ ۱۶۵لومړی ټوک تفصیل احسن الفتاوی مخ۷۷ټوک دوهم اوفتاوی دارالعلوم مخ۲۹۸لومړی ټوک بحواله ردمحتارمخ۲۸۰لومړی ټوک)

## دفکروړخبره

اوس هغه خبرهٔ کيږی چي ومعذورانسان ته دهغه کول پکاردی هغه داده چي معذور انسان ته په کاردی چي دخپلي معذوری حالت لږی کړی یادی دخپل وس مطابق دکمولوهڅه وکړی همدارنګه که تکلیف نه وو یعني دالازمه ده چي ترڅوپوری ممکنه وی درملنه دی وکړی ځکه که داممکنه وی چي دناروغی څخه دخلاصون لپاره دډاکترانودتجویز مطابق خپله درملنه کولای شي اونه یي وکړی نوګنهګار کيږی فقهاؤ داتصریح کړیده چي ودغه ناروغیوته دخپلي ناروغی درملنه واجبه ده اودخپل وس مطابق دی ددغی ناروغی دلږی کولوهڅه وکړی له دغه څخه دامسئله راووته چي دارنګه ناروغ چي درملنه نه کوی اوناروغی ئي زیاتيږی سره له دی چي ددغه درملني وړوی نوګنهګاردی. (کتاب الفقه مخ۱۶۶لومړی ټوک)

## معذوردی څنګه اودس وکړی ؟

دابښکاره ده چي جامه یاکاغذدرملني یه ډول پردغه رنګه ناروغیو باندی واجب دی لکه د استحاض په حالت کی چي یي ښځه استعما لوی (یعنی دښځودحیض له وینوڅخه پرته درګ دچاودلوله کبله

وینی همیشه راروانی وی )چی دهغه له کبله وینه بندیږی یاپه هغهٔ کښې کموالی رائحی همدارنګه که لمونځ کونکی په ولاړی لمونځ کوی نوبولی ځینی کیږی یاپه ولاړی لمونځ کولوسره وینی ځینی بهیږی یایوبله دارنګه خبره وی نوپه ناستی دی لمونځ وکړی اوکه درکوع یاسجدی له کبله دغه ورپیښیږی نودی رکوع اوسجده نکوی بلکه په اشاره سره دی لمونځ وکړی.

مسئله: که دناروغی دپیښیدوله کبله پرجاموباندی مرداری ولګیږی اودده داخیال وی چی که دغه ومینځم بیاهم له لمانځه څخه مخکی مرداریږی نوددغه مینځل واجب نه دی خوکه یي داخیال ووچی دلما نځه دپوره کولوڅخه مخکښې نه مرداریږی نوبیائي مینځل واجب دی .(کتاب الفقه مخ۱۶۷ لومړی ټوک اوفتاوی دارالعلوم مخ۲۹۶ لومړی ټوک بحواله ردمحتارمخ۳۸۱ لومړی ټوک)

مسئله: معذورته په کارده چی له دغه طریقی څخه لکه څنګه چی پورته بیان شوه داودس کولووروسته پرته له یوه فرض لمانځه څخه بل فرض لمونځ ونکړی بلکه دالازمه ده چی دهر فرض لمانځه لپاره داوداسه اړوندپرټوله شیانوباندی عمل وکړی بیاپه دغه اودس سره دفرض لمانځه سره نوافل هم چی زړه ئی وغواړی کولای شی کهٔ دفرض لمانځه څخه مخکی یي کوی که یي وروسته کوی داخبره د نیت په بیان کښې ښودل کیږی چی پرمعذورسړی باندی واجبه ده چی داوداسه په وخت کښې داباحت الصلوة نیت وکړی په داډول چی په زړه کښي اراده وکړی چی له دغه اوداسه څخه زمانیت دادی چی دنبی ﷺ له طرفه څخه زمالپاره دلمانځه اداکولومباح شی په دغه ډول دنیت کولوحکم ځکه دی چی دغه اودس په حقیقت کښې اودس نه دی ځکه



چی اودس دهمیشه بولوراتللوله کبله ختمیږی دغه اسانی خوپه اسلام کښې ایښودل شوی ده چی په دغه اوداسه سره پرلمونځ کولوباندی ثواب ورکول کیږي ځکه چی دشریعت په ټولواحکاموکی دخلګودښه والی اوددنیااواخرت ددواړوجهانو ښه والی پکی نظر دی. (کتاب الفقه مخ۱۷۰ لومړی ټوک اوآپ کی مسائل مخ۳۳۲ ټوک دوهم اومخ۳۲۹ ټوک دوهم)

مسئله: که دسړی له ټپ څخه موادبهیږی نودغه سړی معذوربلل کیږی ددغه سړی په یوه اوداسه ددوهم وخت لمونځ نه دی روا دوخت په وتلوسره دده اودس ماتیږی ددوهم وخت لپاره بایدنوی اودس و شی .(فتاوی دارالعلوم مخ۲۹۵ لومړی ټوک بحواله ردمحتاراحکام معذور مخ۲۸۱ لومړی ټوک)

## دمذی دناروغ لپاره داوداسه حکم

مسئله: دهمیشه مذی له کبله چی دناروغی په حالت کښې وی یوڅوک معذورنه بلل کیږی خوکه دمذی همیشه وتل دیوناروغی له کبله نه وو بیامعذور بلل کیږی همدارنګه هغه څوک معذور بلل کیږی چی دمذی دوتلوپه وخت کي دمعمول په اندازه دلذت (خوند) احساس کوی که دناروغی له کبله خوداسی نه دی خو چی واده نه دی کړی ځکه ده ته دمذی دوتلوپه وخت کښې لذت محسوسیږی په داډول چی دخالص کتلویاخیال کولوڅخه همیشه مذی رائحی نوپه هرصورت کښې په دغه سره اودس ماتیږی خواکه دغه کیفیت ټوله وخت وی (یعنی خالص دناروغی له کبله همیشه ووزی لکه دبولوپه مسئلوکښې چی تیرشوی دی نومعذوربلل کیږی که دمذی په وتلوکی لذت وی که څه هم دغه لذت همیشه وی معذورنه بلل کیږی (کتاب الفقه مخ۱۶۸ توک لومړي اوفتاوی دارالعلوم مخ۲۸۹ لومړی ټوک بحواله ردمحتارمخ۲۸۰ لومړی ټوک احکام المعذور)

مسئله: دمذی اوودی په وتلوسره اودس ماتیږی. (هدایه مخ۱۲ توک لومړی)

مسئله: كه سړي وښځې ته لاس وروړي يايي خالص خيال وكړي نو كه دسړي يادښځې دمخ له لوري څخه اوبه راغلی نواودس يي ما تيږي ودغه اوبوته چې دجوش په وخت كې راووزي مذي ويل كيږي.

مسئله: وښځوته دناروغی له كبله دمخ له لوري دپوزي دموادوپه شان سپيني اوبه راځي دغه مرداري دي اوددغه په وتلوسره اودس ماتيږي. (بهشتی زيورمخ۷۴لومړی ټوک بحواله هدايه مخ۳۹لومړی ټوک اوشرح التنويرمخ۱۳۹)

مسئله: دبولويادبل شي څاڅكي راوتل يقيني وي نواودس كول ضروري دي كه دشرعی عذرو اندازي ته رسيدلي وو دلمانځه په ټوله وخت كښې يي دومره وخت نه شوپيداكولای چې پوره اودس وكړي اولمونځ وكړي يعنی دومره وخت له څاڅكو څخه دخوندي كيدلو نشی پيداكولای چې اودس اولمونځ پكښې وكړي نودغه سړي شرعی معذوربلل كيږي ددغه حكم دادی چې په ټوله وخت كښې دي يوځل اودس وكړي اوچې زړه يي غواړي ددغه وخت دلمانځه سره دی نورلمنځونه (نفلونه ) وكړي په دغه وخت كی داوداسه دراګرزولو ضرورت نشته څه وخت چې وخت ووزي اودس يي ماتيږي.

(فتاوی دارالعلوم مخ۲۸۵لومړی ټوک بحواله ردمحتارمخ۱۲۴لومړی ټوک اومخ۲۸۱لومړی ټوک باب نواقض الوضوءامدادالفتاوی مخ۳۴لومړی ټوک)

**دكوم چاچي لاسونه اوپښې پرې شوی وی يايي مصنوعی وی اودس دې څنګه كوی ؟**

مسئله: كه ديوچالاسونه اوپښې پرې شوي وی نوهغه دی داوداسه پرانداماوبه وبهوی كه يي پردغه قدرت نه درلودنيادی تيمم ووهی كه پرلاسوباندی ټپ وی يايي مټی پوره پری شوی وی اوپرمخ باندی داوبواچولو قدرت هم نه لری نومخ دی دتيمم په نيت سره دديوال يابل



شی سره ونښلوی اوكه پرمخ باندی دټپ له كبله پردی هم نه وی قادرچې مخ دمځكی يادیوال سره ونښلوی نوبيادی بيله پاكی لمونځ كوی. (احسن الفتاوی مخ۱۷ټوک دوهم بحواله ردمحتارمخ۲۳۳لومړی ټوک)

مسئله: كه دبجلكی دپورته برخی څخه پښه پری شوی وی نود مصنو عی پښی وخلاصولوته ضرورت نشته ځكه چې ددغی پښي مينځل ساقط شوی دی (دمصنوعی پښي يادبل مينځل ضروری نه دی.

(آپ كی مسائل مخ ۳۲۹ټوک دريیم)

**په ناسته اوسجده سره اودس ماتيږی ؟**

پوښتنه : يوسړی دمواسيرونار وغی لری څه وخت چې لمونځ كوی نودسجدی ركوع اوناستې په حالت كښې هميشه مرداری ځينی وزی خوڅه وخت چې ولاړوی بيادغه صورت نه ورپيښيږی نوپه دارنګه حالت كی لمونځ بايدڅنګه وشی خالص په ولاړه لمونځ كيدلای شی ؟

ځواب كه دناستې يودارنګه شكل وی چې دهغه په اختيارولوسره مرداری نه راوزی نودی په ناسته سره لمونځ وكړي ركوع اوسجده دی په اشاره سره وكړي كه دغه ډول لمونځ كول ممكن نه وی نود ولاړو په حالت كښې دی لمونځ وكړي ركوع اوسجده دی په ايشاره سره كوی كه دبولوپه ځای كښی په جامه ايښودلوسره مرداری نه راوتله اودجامی ودباندی برخی ته مرداری نه رسيدله نوپه دغه ډول دی لمونځ وكړي. (احسن الفتاوی مخ۸۰ټوک دوهم اوفتاوی دارالعلوم مخ۲۹۰لومړی ټوک بحواله ردمحتارمخ ۲۸۳لومړی ټوک فصل احكام المعذور)

دكوم سړي اودس چې په كښينستلواوسجده كولوسره ماتيږی اوله ركوع اوسجدی څخه هم عاجزوی نودارنګه ناروغه دی په ولاړي

او اشاره کولوسره لمونځ وکړی ودغه رنګه ناروغه ته په ستونی ستغ
پریوتلوسره لمونځ کول روانه دی دولاړی په حالت کښې دسجدې
اورکوع لپاره اشاره کول صحیح ده .
(احسن الفتاوی مخ۸۰ټوک دوهم بحواله ردمحتارمخ۷۰۹لومړی ټوک بحواله بحرمخ ۲۷۳لومړی ټوک)

## دبولودناروغه لپاره داودس حکم

مسئله: هغه پمبه چې دبولوپه سوری کښې ایښودل شوی وی اودننه
برخه ئی لنده شوی وی ترڅوچې یې ښکاره برخه نه وی لنده شوی
اودس نه ماتیږی. (احسن الفتاوی مخ۷۳ټوک دوهم بحواله ردمحتارمخ۱۳۸لومړی
ټوک اوفتاوی دارالعلوم مخ ۱۳۹لومړی ټوک)
مسئله: دکوم سړی څخه چې دبولوڅاڅکی لویږی که دغه څاڅکی په
دننه سوری کښې ولیدل شی نواودس یې پرځپل ځای پاته دی
ترڅوچې پردباندی برخه باندی ښکاره نشی اودس نه ماتیږی.
(فتاوی دارالعلوم مخ۱۳۵لومړی ټوک بحواله ردمحتارمخ۳۵لومړی ټوک کتاب الطهارة)
مسئله: وکوم چاته چې دبولوناروغی وریپیښه وی که هغه سړی دبو
لوسوری له پمبه څخه ډک کړی که دپمبه دننه اودباندی برخې لندی
شی نوددغه سړی اودس مات دی لیکن داهغه وخت اودس ماتوی چې
پمبه دسوری څخه دباندی راوتلی وی یاددغه په اندازه وی که هغه
دسوری څخه لاندی وی یعنی په دننه برخه کښې پراته وی نوپه دغه
وخت کښې دپمبه دلندیدلوڅخه اودس نه ماتیږی ځکه چې په دغه
صورت کښې راوتل موندل شوی نه دی همدغه حکم دی دهغه پمبه
چې کوم سړی یې دغټوبولوپه ځای کښې کښیږدی یایې ښځه په خپل
فرج کی کښیږدی یعنی که : غه پمبه له دغه ځای څخه دباندی وی



یاورسره برابروی اولندوالی دباندی راوتلی وی نواودس ماتوی که
دغه ډول نه ووبیا اودس نه ماتوی لیکن که دپمبه دباندی برخه نه وی
لنده شوی بلکه خالص دننه برخه لنده شوی وی نواودس نه ماتوی.
مسئله: که هغه پمبه دسوری څخه ولویدل نوورته کتل کیږی که پمبه
لنده وه نواودس ماتوی اوکه نه وه لنده بیایې نه ماتوی اودغه حکم
دی دهغه سړی داوداسه چې خپله ګوته دغټوبولوپه ځای کښې
واچوی لیکن پوره ګوته دننه نه وی تللی یعنی که ګوته لنده راووتله
نواودس ماتوی اوکه وچه راووتله بیااودس نه ماتوی .
مسئله: اوکه پوره ګوته پکښې داخله کړی دارنګه چې ټوله پټه شی
نوددغه سړی اودس ماتیږی اوکه دغه عمل روژتی سړی داستنجاپه
وخت کښې وکړی نودده روژه باطله ګرزی. (کشف الاسرارمخ
۱۴لومړی ټوک ) داستنجاپه وخت کی په ګوته ننوتلوسره ځکه روژه
باطلیږی چې د ګوتی سره دننه اوبه ځي ځکه چې داستنجاپه وخت
کښې ګوته په اوبوسره لنده وه تفصیلی احکام دروژې متعلق په
مسائل روژه کښې داحقرپه کتاب کښې وګوری . محمدرفعت قاسمی غفرله

## دمعذوردجاموحکم

مسئله: دکوم ناروغه له تپ څخه چې وینی بهیږی څه وخت چې جامه
بدله کړی هغه بیاناپاکه کیږی نوددغه ناروغه دجامی دپاکوالی
داحکم دی که دایقین ووچې دلمانځه دکولوڅخه مخکښې دوهم ځل
نه ناپاکه کیږی نوپه اجماع سره مینځل یې ضروری دی اوکه ددهم ځل
دناپاکه کیدوویره وه نوبیایې مینځل ضروری نه دی.

مسئله: که جامه دمینځلویابدلولوڅخه وروسته اودلمانځه له ختمو لومخکښی لنده شی نوددی مینځل یابدلول واجب نه دی که دارنګه نه وی بیاواجب دی.

مسئله: که وناروغه ته دناپاکوجاموبدلول ګران وی نوپه داغه جاموکښی دی لمونځ وکړی. (احسن الفتاوی مخ ۷۵ دوهم ټوکبحواله ردمحتارمخ ۶۳ ۵ لومړی ټوک اومخ۲۸۲لومړی ټوک اوبهشتی زیورمخ۵۵لومړی ټوک شرح التنویرمخ۱۶۱لومړی ټوک)

مسئله: که دوخت دداخلیدلووروسته یوټپ راغلی چی له هغه څخه وینه نه بندیدله نولمونځ دتراخردوخت پوری وځنډه وی که بیاهم وینه نه وه بنده شوی بیادی اودس وکړی اولمونځ دی وکړی که ددوهم لمانځه په ټوله وخت کښی هم بهیدله نوداول لمانځه راګرزول ضروری نه ده اوکه ددوهم لمانځه دختمیدلوڅخه مخکښی وینه ودریده نوداول لمانځه راګرزول واجب دی (که یي داګمان وو چی ددوهم وخت دختمیدلوڅخه مخکښی عذرختمیږی نولمونځ په اخری وخت کښی کول فرض نه دی )نبه داده چی لمونځ وکړی اووروسته دی قضاً راوړی. (احسن الفتاوی مخ۲۸۲لومړی ټوک)

مسئله:که له ټپ څخه نوونه راووزي که څه هم په پټی کي دننه وی اودی ماتیږي خودچاټپ شي هروخت بهیږي دمعذروالی له کبله دهغه اودس نه ماتیږي. (امدادالفتاوی ۳۴ج۱)

## ایامعذورداشراق په اودسه سره دماپښین لمونځ کولای شي

پوښتنه : یومعذورسړی دی اودس ئی وکړی اودسهارلمونځ ئي وکړی بیادلمردراختلووروسته یي بل اودس وکړی اوداشراق لمونځ



یي په وکړی څه وخت وروسته یي په دغه اوداسه سره دڅاښت لمونځ وکړی ایاداصحیح کیږی ؟

ځواب :دڅاښت لمونځ خوصحیح کیږی بلکه دماپښین لمونځ هم په دغه اوداسه سره صحیح کیږی ځکه چی دمعذور اودس دوخت په وتلوسره ختمیږی نوځکه دماپښین دوخت ترختمیدلوپوری چی زړه یي وغواړی فرض اونفل کولای شی. (احسن الفتاوی مخ۷۸ټوک دوهم بحواله ردمحتارمخ۲۸۲لومړی ټوک)

## ایامعذورسړی تروخت مخکښی اودس کولای شی ؟

پوښتنه : معذورسړی دهرلمانځه لپاره نوی اودس کوی خوڅه وخت چی معذوردماښام دلمانځه لپاره اودس کوی نویویادوه رکعته ځینی تیریږی نوپه دغه رنګه وخت کښی دی دوخت څخه مخکښي اودس کولای شی ؟

ځواب : معذورسړی دوخت څخه مخکښی اودس نشی کولای څه وخت چی وخت داخل شی بس اودس دی کوی که څه هم دجماعت دتیریدلوویره وی. (فتاوی دارالعلوم مخ۲۸۹لومړی ټوک بحواله ردمحتارمخ ۲۸۰لومړی ټوک )

مسئله: که یوسړی په دارنګه ناروغی کښی بوخت ووچی په هغه کښی داودس دماتیدلوشیان روان وویعنی وده ته دومره وخت نه وررپیداکیدی چی دناروغی څخه خالي وی اودی لمونځ پکښی وکړی نودغه سړی ته دهرلمانځه لپاره نوی اودس کول ضروری دی ځکه چی دده اودس دوخت په ختمیدلوسره ماتیږی کومه ناروغی چی وده ته

وریپبنه ده په دغه سره اودس نه ماتیږی اودلمانځه دوخت په را تللوسره نه ماتیږی.

مسئله: هغه سړی چی دناروغی له کبله یي اودس نه پاته کیږی دلمر ذراختلووروسته یي اودس وکړی اوبل داسی شی نه شووریپبښ چی اودس ماتوی نودماپښین په راتللوسره ددغه کس اودس نه ماتیږی بلکه دماپښین دوخت په ختمیدلوسره ماتیږی اودمازدیګرپه راتللوسره پرده نوی اودس لازمیږی اوترڅوچی یي ناروغی یومخ نه وی جوړه شوی یعنی دیوه لمانځه پوره وخت نشوپیداچی په هغه کښی دده ناروغی نشی پیښه نودغه سړی معذوربلل کیږی دیلګی په توګه دیوکس دسترګی څخه خیری راووزی اوهروخت دسترګو څخه اوبه بهیږی یادیوکس دسوزک ناروغی وی هر وخت دهغه بولی بهیږی یاویوکس ته دهواناروغی وریپبنه وی یعنی هروخت یي دلویوبولوله ځای څخه هواراووزی یایي لویي بولی جاری وی یادیوکس دټپ څخه همیشه وینی یانوونه بهیږی یادیوکس دارنګه ناروغی وی چی ترپوزه یي همیشه وینی بهیږی یادیوکس له فرجوڅخه همیشه منی یامذی بهیږی یایوښځه مستحاضه وی (یعنی دیَوښځی څخه دحیض اونفاس څخه پرته نوری وینی دیوناروغی له کبله راځی. (علم الفقه مخ ۶۵لومړی توک)

مسئله: د کوم کس چی دارنګه ناروغی یي وی چی داودس دماتیدو لړشیان یي جاری وی ودغه کس ته دامستحب ده چی تراخره وخته پوری انتظاروکړی اوپه اخری وخت کی اودس وکړی په اول وخت



کښی یي نه وکړی ځکه چی داکیدلای شی چی په اخروخت کښی دده ناروغی ورکه شی. (علم الفقه مخ۸۳لومړی توک)

مسئله: که دیوچاپښه دبجلکی سره پری شوی وه اوپه بله پښه یي موزه اغوستی وه نووده ته خالص پریوه موزه مسح کول روادی.

(علم الفقه مخ۸۳لومړی توک)

## دمعذورداوداسه په اړوندمسئلی

مسئله: که یوحکیم حاذق (پوه طبیب) ویوچاته دناروغی له کبله دیواندام له مینځلو څخه منع کړی نوددغه اندام مینځل فرض نه دی بلکه مسح دی کړی خومسح هم هغه وخت چی زیان نه رسوی که یي زیان رساوی بیامسح هم معاف ده.

مسئله: په اوداسه کښي چی دکوموانداamo مینځل فرض دی که په دغه اندامو کی ټپ وی یاچاودلی وی یادردکوی نوکه په دغه حالاتو کي اوبه رسول تکلیف نه وي اونه زیان وررسیږی داوبوله کبله نو مینځل یي فرض دی که داسی نه وی بیادی مسح وکړی اوکه مسح هم نشی کولای نوبس پریږدی. (درمختار)

مسئله: که په لاس کښی ټپ وی یاچاودلی وی چی دهغه له کبله لاسونه اودلاسوپه ذریعه نوراندامونه نشی مینځلای اونه په یوبل چل سره نوراندامونه مینځلای شی اونه ئي په بل مینځلای شی نوپه دغه صورت کی اودس فرض نه دی بلکه تیمم دی ووهی که یي کولای شو.

مسئله: پرلاس پښه اومخ باندی که دوااچول شوی وی نوپردوا باندی اوبه بهول واجب دی په دی شرط چی زیان به نه رسوی که داوبوبهولووروسته دواخپله ایله شوه یایي په قصدایله کړه که دجوړ

والی له کبله ایله شوه یایي بیله کړه نومسح باطلیږي یعنی ددغه
اندامومینځل ضروري دي.

مسئله: که دیوچالاس سره له ړیریوپرې شوی وي یایي پښه سره له
بجلکوپرې شوی وي نوپه دغه حالت کې دلاس اوپښې مینځل واجب
نه دي که یي په یو طریقه مینځلای شي اودسرمسح کولای شي نودې
وکړي که یي نشي کولای هغه هم فرض نه دي بلکه دتیمم په نیت سره
دې ددیوال یابل شي سره ونښلوي اوپه دغه صورت کښې دې مسح
وکړي.

مسئله: که دیوچالاس پرې شوی وي خوړیري یادړیري څخه زیات
پاته وي یایي پښه پرې شوی وي خوبجلکه یادبجلکې څخه زیات پاته
وي نوپه دغه صورت کښې دړیرې اوبجلکې مینځل واجب دي
اودهغه څخه دلاندې برخې مینځل فرض دي.

مسئله: که لاسونه دړیریوسره پرې شوي وي یاپښې له بجلکوسره
پرې شوي وي اومخ هم خوږمن وي نوپه دغه صورت کښې اودس
فرض نه پاته کیږي.

مسئله: کوم څوک چې له یووجې څخه ددواړوغوږومسح په یوه ځل
نشي کولای (فلج زده وي )نودې لومړی دراسته غوږمسح وکړي
بیادې دچپه غوږمسح وکړي. (علم الفقه مخ ۸۲لومړی ټوک)

## داوداسه په اندامو کښې یواندام خوږیامات شي

داوداسه په اندامو کې یواندام خوږیامات شي یایي له یووجې پټۍ
باندې لګولې وي ددغه درې صورته دي (لومړی ) صورت دپټۍ
خلاصول ضررمن وي دبدن مینځل ضررمن وي اوکه نه ی لکه چې



دمات شوی لاس یاپښې پټۍ خلاصول ضررمن دي نوپه دغه صورت
کښې که پرپټۍ مسح کول زیان نه رسوي نوپرټوله پټۍ دې مسح
وکړي دغه پټۍ دټپ په برابرې باندې تړل شوې اوکه دټپ څخه پرته
پرجوړبدن هم تړل شوې وي اوکه مسح هم زیان رسوي نوبس پرې دې
ږدي (دوهم) صورت دپټۍ خلاصول ضررمن نه وي لیکن څه وخت
چې یي خلاصه کړي بیایي خپله نشي تړلای یاداسې کس هم نه وي
چې ویي تړي نوپه داسې حالت کې دې مسح وکړي په دې شرط چې
زیان نه رسوي که یي رسوي بیاهم مسح معاف ده (دریم صورت
)دپټۍ خلاصول که ضرر من نه وي اونه دخلاصولووروسته بیرته په
بندولو کښې وخت لګیږي نوپه دارنګه حالت کښې که دټپ مینځل
زیان نه رسوي نوپټۍ دې خلاصه کړي ټول اندام دې ومینځي اوکه
دټپ مینځل زیان رسوي نوخوږمنه برخه دې نه مینځي پاته جوړه برخه
دې ومینځي په دې شرط چې دمینځلوله کبله زیان نه رامنځ ته کیږي
پرخوږمنه برخه که مسح تاوان نه رسوي نودې مسح پروکړي که یي
تاوان رساوي بیادې پټۍ وتړي اومسح دې باندې وکړي که مسح هم
تاوان رساوي بیامسح هم معاف ده.

مسئله: که پټۍ دارنګه تړل شوې وه چې په منځ کښې یي جوړه برخه
هم تړل شوې وه پردغه دې هم مسح وکړي په دې شرط چې دپټۍ
خلاصول یادهغه اندام مینځل زیان رسوي. (علم الفقه مخ ۸۳لومړی ټوک)

مسئله: که پریوه پټۍ بله پټۍ وتړل شي نوپرهغه هم مسح روا ده.
(علم الفقه مخ ۸۳لومړی ټوک)

مسئله: که بیله پټۍ په مسح کولوکښې ویره وی نودی پرپټۍ باندی لوندلاس تیرکړی که په شاوخواکښې یوځای وچ پاته شی پروانلری پرټوله ځای دی لاس تیرکړی که څه هم اوبه ولګیږی اوپاته شی لکه څنګه چی په مسح کښې کیږی پروانلری اوکه دغسل ضرورت وی بیایي هم دغه حکم دی یعنی دټپ ځای دی مسح کړی (لوندلاس دی باندی تیرکړی )اوپرنوربدن دی اوبه وبهوی اوودی مینځی.

(فتاوی دارالعلوم مخ۲۹۷لومړی ټوک بحواله ردمحتارمخ۵۰لومړی ټوک باب المسح علی الخفین تفصیل وګوری په بهشتی زیورمخ۴۹لومړی ټوک بحواله شرح الوقایه مخ۱۰۱لومړی ټوک مراقي الفلاح مخ ۳۶کبیری مخ ۱۱۵غنیه مخ۱۱۵فتاوی هندیه مخ۳۴)

مسئله: که پرټپ پټۍ تړل شوی وی وینه اونوونه پرپټۍ باندی ښکاره راوزی که وینه یانوونه دومره ووچی که پټۍ نه وای تړلی نووینه به له خپل ځای څخه بهیدله نواودس ماتیږی. (علم الفقه مخ۶۵لومړی ټوک)

## اودس په دوه ډوله شیانوسره ماتیږی

اودس چی په کوموشیانوسره ماتیږی دهغه دوه قسمه دی یوهغه شی دی چی دانسان له بدن څخه ووزی بل هغه دی چی دانسان پربدن باندی راځی لکه بی هوښي خوب اونورداول قسم دوه صورته دی یوهغه چی دخاص اومشترکی برخی څخه ووزی لکه بولی اوګندګی دوهم هغه دی چی دنور وځایوڅخه که یوشی ووزی لکه وینه ،قئ اونوردلومړی قسم صورت : لومړی دژوندي انسان له خاصې برخې څخه کوم شئ ووزي نو اودس ماتوی خوادغه شی پاک وی لکه شګه یاډبره یابل شی یاناپاکه وی لکه بولی ګندګی مذی همدارنګه نور(دوهم)نارینه یاښځینه که په خپل فرج کښې جامه یابل شی کښیږدی اودغه جامه په بولوسره لنده شی اودجامی په دباندی برخه



کښې ددی اثرمعلوم شونواودس ماتیږی داهغه وخت چی جامه په فرج کښې نه وی پټه شوی که جامه په فرج کښې پټه وه بیاپه لندولوسره اودس نه ماتیږی غرض داچی دمرداری په وتلوسره هغه وخت اودس ماتیږی چی مرداری جلاشی یابښکاره شي.

مسئله: دژوندی سړی دلویوبولوله ځای څخه که یوشي ووتی خوپاک وی لکه شګه یاډبره یاناپاکه وی لکه لویي بولی اودس ماتوی

مسئله: که دښځې دلوی اوکوچنی بولوځایونه سره یوشوی وو فرق یي نه کیدی نودهری برخی څخه چی یي هواراووزی اودس ماتوی ځکه ددوی فرق نه دی پاته شوی.

مسئله: که په دووبرخوکښې دیوی برخی څخه شی راووتی بیرته ننوتی اودس ماتوی دبیلګی په توګه دښځی له فرج څخه ماشوم یوجزلکه سریابل غړی راوواتی اوبیرته ننوتی که هغه غړی دباندی راوتلی وونیم وی یادنیم څخه زیات یالږوی په دی شرط چی وینه به نه وی راوتلی دایي ځکه وویل چی که وینی راووزی بیاخولویه بي اودسی ده چی غسل واجبوی (دوهم ) دنارینه یابښځینه دلویوبولوله ځای څخه یوشی راووزی بیابیرته ولاړشي یعنی دننه شی (دریيم ) همدارنګه که دکولمی یابل شی یوه برخه دباندی راووتله اوبیرته ننوتله (څلورمه )که دیوکس دلوي بولوله ځای سره یادکوچنی بولوله ځای سره نیژدی یوټپ جوړشواوله هغه څخه سوری جوړشونوددغه سوری هم هغه حکم دی کوم چی دبولودځای دی په دی شرط چی ددغه سوری څخه به هم هغه مرداری راوزی کوم چی دبولوله ځای څخه راووزی دبیلګی په توګه (لومړی

)دلوئی بولوله ځای سره نژدی یوسوری جوړشی اوله هغه څخه مرداری راووزی (دوهم) یادکوچنی بولوله ځای سره نیژدی یوسوری جوړشی اوله هغه څخه بولی راووزی (دریيم) که دلړی بولوپه ځای کښی یوشی واچول شی لکه لرګی یاګوته یابل شی هغه یي خپله پکښی واچوی یایي بل پکښي واچوی نوځه وخت چی هغه دباندی راووزی اودس ماتیږی (داهغه وخت چی هغه شی لوندوی یعنی په مرداری لړلی وی که دارنګه نه ووبیااودس کول نه کاردی .محمدرفعت قاسمی غفرله

(څلورم) منی که بیله خونده ووزی اودس ماتیږی دبیلګی په توګه یوکس درونډشی پورته کړی یاله یوپورته ځای څخه راولویدي اوله تکلیف څخه یي منی بیله خونده ووتلو(دبیله خونده توری ځکه وآیي که په خوندسره ووتلوبیاغسل واجبوی.

(پنځم)دکوموشیانوله کبله چی غسل واجبیږی لکه حیض نفاس او منی په دغه سره اودس هم ماتیږی. (علم الفقه مخ ۶۵لومړی ټوک هدایه مخ۷لومړی ټوک شرح نقایه مخ ۹لومړی ټوک ، کبیری مخ۱۲۴تفصیل وګوری بهشتی زیورمخ۱۱۶لومړی ټوک اوبخاری شریف مخ۲۹ ج۱اوفتاوی دارالعلوم مخ۱۴۰لومړی ټوک)

**په اوداسه کښی دیواندام په نه مینځلوکی شک پیداشی نو؟**

مسئله: له اوداسه کولووروسته که دیواندام په نه مینځلوکښی شک پیداشو اوهغه اندام معلوم هم نه دی نودی دشک دلری کولوپاره کیڼه پښه ومینځی همدارنګه که داوداسه په منځ کښي دیواندام دنه مینځلوشک پیداشی نوپه دغه صورت کی دی اخری اندام ومینځی دبیلګی په توګه دږیری پوری دلاس دمینځلووروسته دغه شک پیداشونومخ دی ومینځی اوکه دپښي دمینځلوپه وخت کښي دغه شک پیداشونولاس دی ومنځی اوداهغه وخت چی کله شک پیدا



کیږی اوکه یوکس ته زیات وخت دغه شک ورپیداکیدي نوهغه لره په کارده چی ودغه ته خیال نه کوی اوخپل اودس دی پوره وبولی.
(علم الفقه مخ۸۳لومړی ټوک)

دمظاهرحق جدیدپه اول جلد ۴۰۲مخ باندی یوحدیث شریف دی چی دهغه مفهوم یعنی معنی داده چی شیطان داوداسه کولوپه وخت کښی دخلګوپه زړوکښي وسوسې اوشکونه پیداکوی اوهغه کس حیران بی عقله جوړوی کله کله داخیال وراچوی چی اوبه وټول ځای ته نه دی رسیدلی اوکله یي په دی شک کښي اخته کوی چی داوداسه اندامونه یوځل مینځل شوی دی که دوه ځله اوکله یي داشک ورپیداکوی چی اوبه مرداری وی اوس په نوروااوبوسره اودس وکړه غرض داده چی په بیلابیلووسوسواوشکونوسره داوبوپه کارولوکی اسراف(زیاتوب )په کوی اواندامونه دسنت طریقی ترحده زیات مینځل کیږی (حدیث)نوځکه حکم شوی دی چی دوسوسی له اوبوڅخه ځان وژغوری یعنی داوداسه په وخت کی داوبوپه استعما لولوکی که دارنګه وسوسی رامنځ ته شی نودغه وباسه اولری یي کوه اواودس په دارنګه توجه سره وکړه چی دشیطان په جال کښی بندنشی اودسنت طریقی څخه زیات هم نشی ز۱. محمدرفعت قاسمی

(په اوداسه کښی دمفصل شک تفصیل په کتاب الفقه علی المذاهب الاربعه کښي وګوری مخ۱۴۵لومړی ټوک)

**له اوداسه څخه وروسته پرچادراوبه شیندل**

مسئله: پرپرتوګ یا بل شی باندی دوسوسی په غرض سره اوبه شیندل صحیح دی خودکوم سړی چی دبولودڅاڅکوناروغی وی هغه دی اوبه هیڅ کله نه باندی اچوی ځکه داویره ده چی پرتوګ دی مردارشي

که په دغه منځ کښې دبولوڅاڅکی راغلی نوپرتوګ یقینا ناپاک ګرزی. (فتاوی رشیدیه مخ۲۸۴لومړی ټوک)

**داوداسه اوبه په د سمال یابل شی سره وچول**

مسئله :داوداسه اوغسل وروسته بدن په دسمال یابل شی سره وچول په قوی اوصحیح قول سره روادی (دمخ په وچولوسره په ثواب کښې هیڅ کمی نه راځی ) لیکن مستحب دادی چی په وچیدلوکښې ډیرزیاتوب و نه کړی بلکه دارنګه دی وچ کړی چی یوڅه اثریې پاتی شی که یووخت په لمن سره وچ کړل شی روادی خو همیشه په لمن سره وچول بزرګانودغه منحوس عادت بللی دی په حدیث شریف کښې راغلی دی چی دنبی کریم ﷺیوه جامه وه چی په هغه به یې همیشه داودس اندامونه وچول.

(الجواب المتین مخ ۷آپ کی مسائل مخ۳۴ټوک دوهم احسن الفتاوی مخ۲۵ټوک دوهم بحواله ردمحتارمخ۱۲۱لومړی ټوک علم الفقه مخ ۸۳ لومړی ټوکاوکتاب الفقه مخ۱۱۹لومړی ټوک)

مسئله: له اوداسه وروسته په دسمال سره لاس مخ وچول روادی اوکه نه شی وچ هیڅ پروانلری اوداخبره چی دډیری اوبه پرمځکه ایله کیږی وفرشتوته دهغه په پورته کولوکښې تکلیف وی بی بنیاده ده. (فتاوی دارالعلوم مخ۱۳۲لومړی ټوک بحواله ردمحتارمخ۱۲۱لومړی ټوک)

مسئله: داوداسه اندامونه په یوه جامه سره وچول که تکبراولویي دښکاره کولولپاره وی نومکروه دی اوکه نه وی مکروه نه دی.

(مظاهرحق مخ۴۰۲لومړی ټوک)

**له اوداسه کولووروسته تحیة الوضوءکول**

له حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی: چی نبی کریم ﷺ یوځل وحضرت بلال ﷺته وویل: چی ای بلاله ماته ستایوداسی اسلامی



عمل په ګوته کړه چی پرهغه باندی وتاته دثواب ترټولوعملونولوی امیددی ځکه چی ما ستادچپلواوازپه جنت کښې مخته مخته اور یدلی دی حضرت بلال رضی الله عنه ځواب ورکړی چی ماته په ټولوعملونوکښې زیات امیدپردغه عمل دی چی شپه یاورځ څه وخت چی اودس وکړم له هغه وروسته دتوفیق په اندازه څه لمونځ هرومرو کومه (بخاری اومسلم ) له حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه څخه روایت دی چی رسول الله ﷺوفرمائل: کوم څوک چی په ښه طریقه اودس وکړی اوبیادوه رکعته لمونځ دارنګه وکړی چی زړه اومخ دواړه یې دلمانځه ولورته متوجه وی یعنی دښکاره اوپټ په پوره توجه او عاجزی سره یې وکړی نوددغه کس لپاره جنت واجبیږی. (الترغیب مخ۳۶۴)

مسئله: له اوداسه کولووروسته که وخت مکروه نه وی دوه رکعته کول مستحب دی. (شرح نقایه مخ۹لومړی ټوک)

**تیمم څه دی ؟**

دتیمم دحکم دنازلیدو واقعه دشعبان دمیاشتی شپږمه وه چی دالله تعالی یولوی احسان دی اودمسلمانولپاره یولوی نعمت دی ددی دشروع حال دام المؤمنین حضرت عائشة رضی الله تعالیٰ عنها له بیان څخه معلوم شودادی چی دنبی ﷺعادت شریفه ووچی څه وخت به یې دسفراراده کوله نوبه یې دخپلوازواجو مطهراتونومونه به یې ولیکل دکومی یوی نوم چی به راوخاتی هغه به یې له ځان سره په سفربیوله نبی ﷺدیوسفراراده وکړه دخپل عادت په څیریې نومان ولیکل دحضرت عائشی صدیقی رضی الله تعالی عنهانوم راوخوت (دزیاتوعلمأ په اندازه دغزوه بنی مصطلق سفرووچی غزوه مرسیع

هم ورته ویل کیږی )او هغه یې دخپل ځان سره په سفربوتله له سفر څخه
په راستنیدو کښې چې څه وخت وځای ذات الجیش ته راورسیدلو
اوذوالحلیفه سره چې دیوغره په نوم صلصل ځای مشهوردی هلته
یې واړول چې مدینه منوره ډیره ځینې لیرې وه هلته دحضرت عائشې،
صدیقې رضی الله تعالی عنهاامیل وشکیدی نبی کریم ﷺ سره له
ټولوخادمانو هلته ودریدل اودڅارنې لپاره یې حضرت اسیدبن حضیر
رضی الله عنه (دادلوی شان انصارصحابی اودنبی کریم ﷺ څخه لس
کالهٔ وروسته وفات شوپه سلګونوصحابه دده شاګردان دی )اوڅه
صحابه یې وټاکل اوامیل نهٔ پیداشوي چې دسهاردلمانځه وخت
راغلی هلته نیژدی اوبه نه وې صحابه کرام ډیرپه شک کښې شول چې
څنګه بې ځایه بند شوو ځینوخلګو دحضرت ابوبکرصدیق رضی الله
عنه څخه شکایت وکړی چې وګوره حضرت عائشه رضی الله
عنهاخلګ په څنګه ځای کښې بندکړل چې داوبونښان هم نشته
اودلمانځه وخت راروان دی ابوبکرصدیق رضی الله عنه درسول الله
ﷺ وخیمې ته ورغلی اوو حضرت عائشې صدیقې رضی الله عنهاته
یې غوصه شروع کړه چې ته همیشه خلګ په پریشانی کښې اچوې
اوس نبی کریم ﷺ په داسې ځای کی راګیردی چې اوبه نه پیداکیږی
حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه حضرت عائشه رضی الله
عنهایوڅه ووهله هم لیکن عائشې صدیقې رضی الله عنهادیوی
خبرې په ځواب هم څه نه وویل اونه ښوریدلې ده ځکه چې نبی کریم
ﷺ ټوله شپه ستړی شوی وو اوویده ووپه امیل پسې یې څارنه وکړه
خوپیدایې نکړی اسیدبن حضیراونورصحابه هم په خپلوهڅوکښې



بریالی نه شول اوبیرته راغله اوټولوخلګو دمجبورۍ له کبله هلته بیله
اوداسه لمونځ وکړی اوداامیل دپیداکولو امیدیې ختم
شودروانیدواراده یې وکړه په دغه وخت کښې الله جل جلاله دسورة
مائده ددوهمې رکوع ایاتونه نازل کړل چې په هغه کښې دتیمم حکم
دارنګه بیان شوی دی [وَإِن كُنتُم مَّرْضَىٰ أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِّنكُم
مِّنَ الْغَائِطِ أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا
فَامْسَحُوا بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُم مِّنْهُ مَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُم مِّنْ حَرَجٍ
وَلَٰكِن يُرِيدُ لِيُطَهِّرَكُمْ وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ]
اوکه تاسوناروغه یاتاسوپه سفرکښې یاست اویاراشی یوله تاسو
څخه دضرورت له ځایه یانژدی شی له ښیبیانوخپلوسره پس بیامواوبه
نه کړی پیدانوقصدوکړی دپاکې زمکې اومسح وکړی پرمخوخپلو
باندی اولاسوخپلوباندی له دغه پاکې زمکې الله تعالی دانه غواړی
چې پرتاسوتنګی راولی لیکن الله تعالی داغواړی چې تاسوپاک کړی
اوپوره کړی ښیګڼې پرتاسوباندی ددی لپاره چې تاسوشکراداکړی )
نبی کریم ﷺ ډیرخوشحاله شواوویې ویل چې ای عائشې ستاامیل
ډیردبرکت وودنبی ﷺ له ویناڅخه وحضرت ابوبکرصدیق رضی الله
عنه ته ډیره خوشحالی حاصله شوه اودخوشحالی په حالت کښې درې
ځله وویل ای لورې ته ډیره مبارکه اودښه بخت خاونده یې .:اسیدبن
حضیر رضی الله عنه چې دامیل په موندلوکې یې ډیره هڅه کړې وه
ویې ویل ای دابوبکراولاددا ستاسودخلګولومړی برکت نه دی بلکه
له دی څخه مخکښې هم ستاسوله وجې الله تعالی پرمسلمانانوباندی
احسانونه کړی دی دالله تعالی په دغه نعمت او احسان سره ټول خلګ

خوشحاله شول اوخپلی بستری اوکجاوی یي وتړلی څه وخت چی یي دحضرت عائشته دسپریدلواوبن ولاړکړنوامیل ترهغه لاندی ووچی دهغه له امله دحضرت عائشی خوشحالی دوه ګونه شوه اوونبی کریم ﷺته ارام حاصل شواوټولوخلګودخدای جل جلاله دمهربانی شکراداکړاوبیرته ومدینی منوری ته ستانه شول له دغی ورځی څخه داوبودنه شتون اوناروغی له کبله دتیمم حکم جاری شواونبی کریم ﷺوویل: [الصعیدالطیب طهورالمسلم وان لم یجدالمأ عشرسنین فاذاوجدالمأفلیمسه بشره ] یعنی که یومسلمان ته لس کاله اوبه نشی حاصلی نوودغه سړی ته په پاکوخاوروتیمم وهل په کاردی اودغه تیمم کافی هم دی بیاڅه وخت چی اوبه پیداشی نوپه هغه سره دی اودس یاغسل وکړی دتیمم دحکم دنازلیدلوپه وخت کښي صحابه ټوله د نبی کریم ﷺسره نه وونوځکه دغه حکم په کرارکرار سره وخلګوته معلوم شوو اوځینی وخت دنه خبرتیاله کبله خلګ دسختی سره مخامخ کیدو خپله نبی کریم ﷺاوصحابه وو وخلګوته دتیمم داحکاموخبرتیا ورکوله اودوخت په پیداکیدوسره یي دمفصل حکمونوتعلیم کاوو.

**دتیمم په هکله یوڅوروایات**

(۱)روایت:یووخت نبی کریم ﷺپه سفرکي وو دلمانځه څخه دخلا صیدو وروسته یي یوسړی ولیدی چی په لمانځه کښي نه وو شریک اودټولوڅخه بیل ناست وو نبی ﷺوویلوچی څه وجه ده چی تاله ټولوخلګوسره یوځای لمونځ نه وکړ هغه وویل پرماغسل فرض شوی دی اواوبه می نه کړی پیداله دغه امله لمونځ نشم کولای (دغه سړی



داخیال کوی چی تیمم یوازی داوداسه پرځای دریدلای شی اودغسل لپاره تیمم نه صحیح کیږی.نبی کریم ﷺورته وویل چی په پاکوخاورو سره تیمم ووهه هغه کافی دی. (بخاری اومسلم)

(۲)روایت:یووخت صحابه دجهادپه غرض په سفرکښي ووپه دوی کی دیوه صحابی په سرکښي ددښمنانوله لوری څخه ډبره ولګیده چی سریي مات شو دغسل حاجت یي پیداشونویي دمجاهدینو ملګرو څخه پوښتنه وکړه چی په دغه حالت کښي تیمم روادی کنه ؟ هغو وویل: چی که ته غسل کولای شی بیازموږ په خیال ستالپاره تیمم روانه دی (ودوی ته مسئله معلومه نه وه چی که دناروغی دزیاتیدو ویره وه بیاتیمم روادی که څه هم اوس پرغسل اواودس کولوباندی قادروی )هغوخلګو پراحکاموشرعی باندی ځان قربانولو عبادت اوپاکی یي په ټول ژوند کښی بنه بلله په دغه حالت کښی یي غسل وکړی اولمونځ یي اداکړي داوبوله کبله یي ټپ خرابي شو اودغه دالله ﷻمخلص اوځان قربانونکی صحابی له دنیاڅخه یي کوچ وکړدجنت فردوس په ځایو کښي یي ځای ونیوی پاته صحابه چی څه وخت ومدینی منوری ته بیرته راغلل اودنبی کریم ﷺپه خدمت کښی حاضرشول اوحال یي ورته ووایونونبی کریم ﷺوویل خدای دی یي هغوته وروښيي هغودغه بیچاره مړکړی (یعنی دغه خلګوغلطه مسئله وروښودله چی دهغه دمرګ ذریعه وګرزیده.

(۳)روایت دادی: چی دصحابه کراموڅخه دوه صحابه په سفر کښی وواوبه یي نه کړی پیدانودواړوتیمم ووا هولمونځ یي وکړی لیکن دلمانځه دوخت له وتلوڅخه مخکی اوبه پیداشوی یوه صحابی اودس

وکړی لمونځ یي راوګرزاوی دوهم صحابی لمونځ نه راوګرزا وو څه وخت چې نبی کریم ﷺ ته ورسیدل حال یي ورته بیان کړکوم صحابی چې لمونځ دوهم ځل نه ووکړی نبی کریم ﷺ هغه ته وویل چې تاپرطریقه مسنونه اوپرقاعده شرعیه عمل کړی دی اولومړی لمونځ کافی کیږی اوودوهم صحابی ته یي وویل چې وتاته دراګرزونی ثواب درکول شو (ځکه چې دوهم ځل لمونځ په نفلوکښی شمارشودهغه ثواب هم حاصل شو.

(۴)روایت دتیمم دحکم دحاصلیدووروسته حضرت عمرفاروق او عماررضی الله عنهماپه یوسفرتللی وواتفاقاددواړوصحابه وود غسل حاجت پیداشودزمانی شروع وه دتیمم مفصل احکام نه وو معلوم نوځکه عمار رضی الله عنه په خاوروکښی ښه ورغړیدی تیمم یي وکړی یعنی دغسل پرځای یي دټوله بدن تیمم وکړی اولمونځ یي وکړی .حضرت عمر رضی الله عنه داخیال وکړی چې تیمم یوازی داوداسه پر ځای دریږی دغسل لپاره روانه دی نولمونځ یي نه وکړی بیرته ونبی کریم ﷺ ته راغلواودنبی کریم ﷺ په خدمت کی حاضرشول اوعرض یي وکړنونبی کریم ﷺ پرزمکه دواړه لاسونه ووهل اوپرمړوندویي یوڅه اندازه وګرزول اشاره وکړه چې بس همدومره کافی ده یعنی څومره چې داودس تیمم دی هم دومره دغسل تیمم دی په زمکه کی دړغړیدو حاجت نشته.(طهورالمسلمین مخ له ۴تر۲۰پوری تألیف حضرت مولانااصغرحسین میا ن صاحب سورة مائده پاره ۶تفصیل وګوری بخاری مخ۴۸لومړی توک مسلم مخ۱٦۰لومړی توک مظاهرحق مخ۴۸لومړی توک)



## دتیمم معنی

دتیمم لغوی معنی قصدکول دی اوپه اصطلاح دشرع کښې ددی مطلب دادی: چې دپاکی حاصلولوپه نیت سره دپاکی خاوری پاهغه شی چې دخاوروپرځای دریږی (دبره چینه اونورشیان )قصدکول اودغه پاکی خاوری پرمخ اولاسولګول اوددی صورت دارنګه دی چې دواړه لاسونه دی پرپاکه خاوره یابل شی ووهی اویوځای دی یي کړی اوبیادی دواړه لاسونه پورته کړی اوټک دی وهی یعنی خاوری دی ځنی لری کړی اووروسته دی پرمخ باندی اوترږیریوپوری دی کش کړی تیمم په اصل کښی هغه وخت داودس یاغسل پرځای دریږی چې اوبه نه وی یاخواوبه وی پراستعمالولویي قادر نه وی او دخدا ی جل جلاله له هغوغټو نعمتونو څخه یونعمت دی چې په خپل کرم اوفضل سره یي یوازی پرامت محمدی ﷺ باندی کړی دی په تیروشوو امتوکي دغه تیمم مشروع نه وو اودتیمم لپاره چې پرپاکوخاورویابل شي باندی لاسونه وهل کیږی وهغه ته ضرب ویل کیږی. (مظاهرحق مخ۴۷۰لومړی توک)

## تیمم په امت محمدیه پوری خاص کړل شوی دی

نبی کریم ﷺ وویل چې موږته دتیروشووامتونوپرخلګوباندی په خاص ډول ددروشیانوپه ذریعه فضیلت راکول شوی دی.

(۱) زموږ (دلمانځه یاجهاد) صفونه دملائکوپه ډول ګرزول شوی دی ،یعنی لکه څنګه چې ملائکوته په صف کې غبادت کولوباندی ډیر زیات نژدیکت اوبزرګي حاصلیږي دغه رنګه موږته هم حاصلیږي.

(۲)زموږ لپاره دټولې زمکې مخ دلمانځه ځای جوړ کړل شوی دی.

ځواب : زموږ لپاره ترټولو غټ مصلحت هم دغه دی چې دالله تعالی حکم دی ، اودالهی رضاوسیله ده ،داغسی قران کریم ددي دمصلحتونو پرلوراشاره هم کړي ده ځکه الله تعالی فرمايي: الله جل جلاله غواړي چې تاسوپه تنګي کي وانه چوی بلکه هغه داغواړی چې تاسوپاک کړي اوپرتاسوخپل نعمت پوره کړی. (سورة مائده : پ ٧)

له دې آیت شریف څخه معلومه شوه :چې الله تعالی داوبودنیستی په وخت خاوره پاکوونکي ګرزولی ده ،لکه څرنګه چې اوبه دانسان بدن پاکوی همدارنګه داوبودنه قدرت په وخت خاوره همداسی پاکوونکي ده،خاوره پاکه ده اودځینوشیانولپاره داوبوپه ځیرمطهر(پاکوونکي) هم ده مثلاً: دڅرمنی موزه ،توره ،شیشه اونوراونجاست چی پرځمکه ولویږي خاوري شي هغه هم پاکیږي ،اودغه رنګه پرلاسونواومخ دخاوروپه مښلوکي پوره عجز هم ،کوم چې له ګناهونودمعافی غوښتلوغوره صورت دی ،ګواکي خاوره ظاهری اوباطنی دواړه ډوله نجاست لیري کوی ،نوځکه دمجبوریت پرمهال دی داوبوقائم مقام داسی شئ وکارول شی چې تراوبوزیات اسانه پیداکیږي ،نودځمکی داسی کیدل ښکاره دی ځکه چې هرځای شته ،لهذاخاوره دانسان اصل دی اوخپل اصل ته په مراجعه کولوله ګناهونواوخرابیوخوندی کیدل دی. (آپ کی مسائل ص ۶۲ ج ۳)

**که نه داوداسه اوغسل لپاره اوبه وی اونه دتیمم لپاره خاوره**

مسئله: څوک چې داودس اوغسل لپاره اوبه پیدانه کړی اونه دتیمم لپاره خاوره اونورهغه ته په فقه کي [فاقدالطهورين ] وایي یعنی داسی شخص چې ورسره له پاکوونکودووشیانویوشئ هم نه وی ،نه



(٣) ددې زمکې خاوره زموږ لپاره پاکوونکي ګرزول شوی ده په هغه صورت کي چې زموږ سره اوبه نه وی. (مسلم)

تشریح: ددروشیانوپه وسیله یعنی په تیرو امتونوکي دلمونځ کولولپاره دجماعت اوصف جوړولوپابندی لازمه نه وه ،هغوی چی به څنګه غوښت هغسی به ئي لمونځونه کول دهغوئ لمونځ ددوئ له ځانګړوځایونو(کنائس ،بیع ) پرته په کوم بل ځای کی کول روانه وُو،اونه هغوئ ته دتیمم سهولت ورکول شوی وُ،اوودغه (محمدي ) امت ته پرتیروامتونوچې دکوموشیانوپه وسیله ځان ته یوشان اوپورته والی ورکړل شوی دی له هغوئ څخه په ځانګړی توګه دغه درې شیان هم دی چی مسلمانانوته دصف جوړولواوپه جماعت سره لمونځ کولوحکم وشو،اوپردی یي دملائکوپه څیراجراوثواب موندلوپه هیله کړو، مسلمانانوته سهولت ورکول شوی دی پرټوله ځکمه چې هر چیري وی (پرپاک ځای) لمونځ وکړی هلته ددوي لمونځ کول رواکیږي ،او مسلمانانوته ددې اجازه شوي ده چې داوبوموندنه لویاداوبوله استعماله دمعذوریدوپه صورت تیمم ووهی . [مظاهر حق جدید ص ۴۷۱ ج ۱]

مسئله: که ترډیري مودی اوبه پیدانه شوی نوپاکه خاوره به هم هغسی داوبوقائم مقام وی. (مفهوم حدیث مظاهر حق ص ۴۷۴ ج ۱ ،کتاب الفقه ص ۲۶۵ ج ۱،احسن الفتاوی ص ۲۶ ج ۲)

**که اوبه پیدانه شي نوتیمم ولي؟**

پوښتنه :داوبونه موندلوپه صورت کي دتیمم حکم کیږي په دي کي څه مصلحت دی ؟

اوبه نه خاوره ،پرداسې چالازم دی چې بيله اوداسه اوبيله تيممه رکوع سجده وکړی لمونځ اداکړی اوبياچې کله پراوبويا خاوره قادرشي په اودس ياتيمم دی دالمونځ بيااداکړی ،مثلاً :يوڅوک داسې تړل شوی وی چې لاس نه شي ښورولای ،ياداسې ناروغ وی چې نه شي ښوريدلای اوڅوک تيمم ورروهونکی هم نه وی ،(ياپه دې ډول يوبل مجبوريت لري) نوپه دی ډول ټولوصورتوکي چې کله داوبويا خاوري هيله نشی پاتی نولازم دی چې بيله اوداسه اوتيممه په رکوع اوسجده فرض لمونځ اداکړی خوپه دی کی دی قرأت اونورهيڅ نه وائي ،اوبياچې کله اوبه پيداکړی يادتيمم شيان پيداکړی نواودس ياتيمم دی ووهی دالمونځ دی دوهم ځل اداکړی .(طهورالمسلمين ص ۱۳۳زميان صاحب ،فتاوی رشيديه ص۲۸۵ج۱)

مسئله:څوک چې داوبواوخاوري دواړوپراستعمال قادرنه وی که داوبواوخاوري دنه شتون په وجه يادناروغۍ په وجه وی نوهغه دی بيله طهارته لمونځ وکړی ،کله چې قادرشی نوپه پاکي دي راوګرزوي (علم الفقه ص۱۰۵ ج۱،هدايه ص۳۶ج۱،کشف الاسرارص۲۳ج۲)

**تيمم داوداسه اوغسل خليفه ګرزولووجه**

(۱) دالله تعالی هم داسې عادت جاري دی ،چې دبندګانولپاره چې کوم شيان ستونزمن وی ،هغه پردوي آسانوی ،اوداسانتياترټولوغوره صورت دادي:چې دکوم کارپه کولوکي تکليف اوپريشاني وی هغه ورځينی ساقط کړی ،دهغه بدل ورکړل شي ،ترڅوپه دې بدل ددوي زړونه پرځای وي ،اودکوم شي چې دوئ بې پايه اهتمام کوي ناڅاپه دهغه په پريښودلوکله چې بدل يي نه وائي ددوي زړونه متردد



اوپريشانه نه وی اودپاکي پريښودلوعاديان نشی ،ځکه الله تعالی داړتياپروخت تيمم داودس اوغسل خليفه (نائب) وګرزاوواودپاکي له ټولګي څخه تيمم هم دمشابهت په وجه يوډول پاکی وګرزول شو .(المصالح العقليه ص۲۸)

(۲)په خاوره اواوبودپاکۍ مشروع کيدل دمستقيم فطرت اوسليم عقل په موافقت دی .

(۳)الله تعالی داوبواوخاوری ترمنځ قدرتاً اوشرعاً اخوت (ورورګلوي ) واچوله ،ځکه دادواړه دپاکي لپاره راغونډشول ،وجه داده چې آدم عليه السلام اودهغوئ اولادالله تعالی له دې څخه پيداکړی دی ،ګواکي زموږ مور اوپلاراوددوي داولادلپاره خاوره اواوبه دموراوپلارپه څيردی. (المصالح العقليه ص۱۶)

**له خاوري څخه دتيمم دځانګړتياوجه**

پوښتنه :تيمم په يوه وجه دعقل په خلاف دی ځکه چې خاوري پخپله ککړي دی هغه مرداري اوخيري نه ليری کوی اونه بدن اوجامی پاکولای شی ؟

ځواب: الله تعالی ددي عالم هرشی له خاوري پيداکړی د ی ،زموږ دپيل کيدواصل همدغه دوه شيان دی چې ورڅخه زموږ وده ،زموږ تقويه اوغذاوی ،دکوم چې موږ مشاهده کوو،نوکله چې الله تعالی دغه خاوره اواوبه زموږ دودې اوتقويې اوغذاء اسباب وګرزول ،نوزموږ دپاکيدو لپاره اوپه عبادت کي دمرستی اخيستولپاره هم ددوي وضع وکړه ،وجه داده : چې خاوره هغه اصل شئ دی ،چې ورڅخه دانسان اونورو پيدائش شوی دی،اواوبه دهرشئ دژوند

باعث دی ،لنډه داچې : ددې عالم دټولوشیانوډپیدا کیدواصل
همدغه دوه شیان دی خاوره اواوبه چې ورڅخه الله تعالی داعالم
مرکب کړی دی ،نوکله چې زموږ اولنی پیدایش اوتقویه اووده له
خاورواواوبوشوی ده نودجسمانی اوروحانی پاکی لپاره هم همدغه
الله تعالی وګرزول.

(۲) عادتاً دمرداری اوګندګی لیرکولورواج په اوبوډیردی اوکله چې
دناروغی په حالت کي اوداوبونه موندلوعذرشی(دناروغی په حالت
کي داوبودنشتوالی په وجه عذروریپیښ شي ) نودپاکي لپاره داوبو
دوهم ملګری اوهمزولی یعنی خاوره دکوم بل شی په نسبت مقررول
زیات مناسب دی.

(۳) دتیمم لپاره ځمکه په دې وجه ځانګړی کړل شوه چې ځمکه
یوځای هم نیستی نه وی نوداسی شي ددې وړکیدای شی چې ورڅخه
دخلګو مشکل لیري شی.

(۴) مخ په خاوروککړول دنفس پرماتولواوخاکساری باندی دلالت
کوي اوداشی والله تعالی ته ډیرخوښ دی ،نودتیمم لپاره دخاوروپه
استعمالولوکي دغه خاکساری اوعاجزی موندله کیږي ،اوذلت شان
دعفوی غوښتلولپاره زیات مناسب دی ،همدغه وجه ده چې په سجده
کولوکي خپل مخ له خاورونه ساتل خوښ اومستحب ګرزول شوی دی
(المصالح العقلیه ص۳۰)

## تیمم وهل هم دالله تعالی فرمان دی

مسئله: ځینی ناروغه داکوتاهی کوی چې سره له دی چې اودس هیڅ
زیان نه رسوی بیاهم تیمم وهی ،کله ناکله بیاپوښتنی ته راغلی



یانورخواخوږي ښاغلی ناروغه له اودس کولوڅخه منع کوی اووائي
: چې محترمه اپه شریعت کي اسانی ده تیمم ووهه ،داډیره ناپوهی ده
ترڅوادوس کول زیانمن نه وی تیمم وهل جائزنه دی.

مسئله: ځینی داغلطی اوبې احتیاطی کوی چې که پردوی هرډول
مصیبت تیرېږي اوکه هرڅومره ناروغی زیاتیږي مرېه شي خوتیمم نه
وهي ،اودس کوی ،داغلوه ده اودپردی شاته دالله تعالی ورکړی
سهولت نه قبلول دی ،کوم چې سخته ګستاخی ده اوبې ادبي ده ،ځکه
لکه څنګه چې اودس کول دالله تعالی حکم دی تیمم وهل هم دهغه
حکم دی ،دبنده کاردحکم منل دی نه دزړه غوښتنه اوپاکی ته کتل دی
،بندګي خودهمدې نوم دی : چې کوم وخت کوم حکم وشی په ځان
اوزړه ئې اطاعت وکړي- (اغلاط العوام ازمولناتهانوی ص۱۹۷)

## په تیمم کي وهم ته اعتبارنشته

پوښتنه :که غسل واجب شی اودمرض زیاتیدویاناروغه
کیدواندیښنه وی نوآیاپه دې صورت کی تیمم کیدای شي ؟

ځواب: صرف وهم ته اعتبارنشته که دچاپه رشتیاداسی حالت وی چې
دي که په تودواوبوهم ولامبی نوناروغي زیاتیږي یادناروغه
کیدوغالب ګمان وی نوده ته دغسل پرځای دتیمم اجازه شته اودغسل
هم هغه تیمم دی کوم چې داوداسه لپاره کیږي.

مسئله: دتیمم اجازه یوائې په هغه صورت کي ده چې داوبوپرکارولو
قدرت نه وی ،کوم سړی چې اوبه کارولای شی دهغه تیمم جائزنه دی
نه دهغه لمونځ صحیح کیږي اوداوبوپراستعمال دقدرت نه

په سفرکي پيښيږي ،نوکه اوبه يو ميل ليري وي ياڅاه خوشته خوله څاه
څخه داوبو راکښلوکوم صورت نشته ياپراوبوکوم ځناوروي
،ياپراوبود دښمن و لکه وی اودهغه دويري په جه تراوبورسيدل
شونی نه وی نوپه دغوټولو صورتوکي ګواکي دي سړی ته اوبه
حاصلی نه دی ،اودی په تيمامه لمونځ کولای شي.
دوهم صورت دادي: چي اوبه خوشته خودی پخپله ناروغه دی اوپه
اودس ياغسل کولوورته دمرګ يادکوم غړی دتلفيدو (له منځه تلو)
ياپه ناروغی کی دزيادت يااوږدوالی انديښنه ده ياپخپله له اودس
ياغسل کولوڅخه معذوردی اوکوم بل څوک اودس ياغسل ور
کوونکی نشته نوداسی شخص تيمم کولای شی .(آپ کی مسائل ج۳ص ۶۳)
مسئله:دناروغي په حالت يادناروغی له ويري تيمم روادی ،کله چي
په سړواوبولمبلوياودس کولوکي دمرګ ياناروغي ويره وی نوتيمم
روادی.(فتاوی دارالعلوم ص۲۴۳لومړی ټوک ،درد المحتار لومړی ټوک ص۲۱۴ ج۱باب التيمم په حواله)

## دتيمم حکم دټولولپاره يودی

مسئله:داختردلمانځه لپاره تيمم هغه مهال جائزدی : کله چي داختر
دلمانځه دفوت کيدو ويره وی،دغه رنګه که دی اودس کوی نوامام به
لمونځ پوره کړي يابه لمرترسرواوړي ،اوداخترانودلمانځه وخت به
تيرشي (خوکه داختردلمانځه دکومې برخې دموندلوهيله وه يابل
ځای په لمانځه کي دبرخې اخيستواميدوو نواودس به کوي تيمم
روانه دی. رفعت
مسئله:دبناء پرمهال هم تيمم روادی دامعنی چي دجنازي يااختر
لمونځ يې په اوداسه پيل کړي وي ،په منځ کي اودس مات شي ،اوس



داويره وی چي که اودس کوی نولمونځ ورڅخه تيريږي نوپه دې
صورت کي په تيمم وهلوبناء کول يعنی په لمانځه کي ورشامليدل
روادی.
مسئله: اوپه دې کي هيڅ توپيرنشته چې بناکوونکی امام وی اوکه
مقتدی يعنی کله چي دجنازي يااختر دلمانځه دتيريدوويره وی نوکه
امام وی هم تيمم وهلای شی اوکه مقتدی وی هم.
ځکه دتيمم درواوالی وجه دلمانځه دتيريدووجه ده چي کوم بدل يعنی
قضاء يي نشته ،کله چي دتيمم دجوازدلمانځه دتيريدووجه ده نود لمر
اوسپوږمی دتندرنيولودلمانځه لپاره،دمؤکدوسنتولپاره هغه که
دسهار وی اوکه نه وی ،اويوائې دهمدغوسنتوتيريدو ويره وی
دسهار دفرضوفاتيدو ويره نه وی ،نوپه دې ټولوصورتوکي تيمم
جائزدی يعنی کله چي داويره وی چي داوداسه لپاره اوبوته رسيږم
لمربه له تندره خلاص شي يادماپښين اوماښام ترفرضواداکولو
وروسته دچااودس مات شواوپه اوبوسره اودس کولوکی ورته داويره
وه چي په اودس کولوبه وخت ووزي نودده لپاره په تيمم سنت کول
روادی.
اوله فرضوپرته دسهاردسنتودقضاکيدوصورت دادي:چي اوبه تريوه
ميل لړليري وي نوخادم يابل څوک يي اوبوراوړلوته ليږلي وي خودده
يقين ياغالب ګمان داوي چي خادم اوبه رارسوي نوبه صرف داودس
کولواوپه مشکل سره دفرضواداکولووخت پاته وی ،نودداسی سړي
لپاره جائزده چي تيمم ووهی دسهارسنت اداکړي ،اوبياچي کله اوبه
ورته راوړي ،نوسمدستی دی اودس وکړي اوفرض لمونځ دی اداکړي

دسهاردسنتوقضاکیدودویري شرط ځکه دي چي که ویره داوي چي له فرضوسره به سنت هم پاتي شي ،نوبیاتیمم کول روانه دی ،په دي وجه چي کله دواړه قضاشي نوهغه وخت دفرضوله قضاسره دسهار دسنتو کول هم صحیح دی .(کشف الاسرار ص۱۵ج۲)

مسئله:دویدیدوپرخت ،دسلام دځواب په وخت داوبوباوجود تیمم وهل جائزدی که څه هم په دغه تیمم لمونځ کول جائزنه دی ،ځکه چي دلمانځه لپاره تیمم هغه وخت جائزوی کله چي اوبه ونه موندل شي یاپه کومه وجه داوبوپرکارولوقدرت نلري ،دهغوټولواعمالولپاره تیمم کول جائزدی چي ورته طهارت شرط نه وی.

مسئله:مسجدته دورننوتلواوپه مسجدکي دویدیدولپاره تیمم وهل جائزدی. (کشف الاسرارص۱۶ج۲)

مسئله:دجمعی لمانځه ،دوخت لمانځه اودوتروقضاء کیدوپه صورت کي تیمم نشي وهلای ځکه چي ددغولمونځوبدل دقضاء په صورت کي وجودلري. (کشف الاسرارص۷۱ج۲)

**تیمم له کهالی اوسستی سره اړه نه لري**

مسئله:په معمولی ناروغی لکه زکام ،تبه اونوروکي ترڅودناروغی زیاتیدواندیښنه نه وی تیمم جائزنه دی ،که تودی اوبه زیان نه رسوی اوموندل کیدای شي هم نوتیمم جائزنه دی.

مسئله:که خاماخاوهمی شوچي ناروغ به شم یابه ناروغي زیاته شی خونه په دې ډول ناروغه کیدوعادت شته اونه په عامه توګه ددې خبري ورته تجربه شته نه معتبرطبیب ورته اوبه زیانمنی ښیئ نوتیمم جائزنه دی که په بدن کي توان وی اواوبه ورته تاوان نه کوي



خودکاهلی اوسستی په وجه واودس کولووته ئي زړه نه کیږي نوتیمم جائزنه دی

مسئله: که یواځي پرلاسونویاصرف پرپښوزخم وی نوتیمم جائزنه دی دټپ پربرخه دی مسح وکړي نورغړی دی ومنځی اودس دی وکړی ،که داوبونه موندولوپه وجه ئي تیمم وهلی وو،تردې وروسته په داسی ناروغي اخته شوچي پکي اوبه ورته زیان رسوي خواوبه ئي وموندلی نواوس په هغه مخکي تیمم لمونځ جائزنه دی په اوبوموندلوهغه مات شواوس دی دناروغي دعذرله مله دوهم ځل تیمم ووهي . (طهورالمسلمین ص۱۶)

**په سړوهیوادونوکي دتیمم حکم**

پوښتنه : چیري چي واوره ډیره کیږي اویخ هم زیات وی هواهم ډیره تیزه چلیږي په اودس کولوکي سخت تکلیف وي تردي چي پښي لاسونه څوساعته یومخ کارپریږدي په داسی حالت کي په تیمم یامسح لمونځ رواکیږي کنه ؟

ځواب :که چیری شاذاونادر داسی صورت وي چي په اودس کولود هلاکت یاناروغي ویره غالبه وی اودتودواوبونظم هم نه وی نه داسی کوم ټوکر اورخت وي چي په هغه کي ځان تودکړی په داسی صورت کي تیمم جائزدی کنه جائزنه دی اودپښومنځلوپه بدل کي دموزومسح کیدای شي .(امدادالفتاویص۴۷الومړی ټوک)

(دتفصیل لپاره داحقربل کتاب دموزومسئلي وګورئ) رفعت

**دتیمم دوجوب شرطونه**

(۱) اسلام پرکافرباندی تیمم واجب نه دی .

(۲)بلوغ پرنابالغ باندی تیمم واجب نه دی.

(۳)عقل پرلیونی باندی تیمم واجب نه دی.

(۴) داوداسه یاغسل ارتیا کوم څوک چي اودس یاغسل ته اړتیانه لري یعنی پاک وی پرهغه باندی تیمم واجب نه دی.

(۵)په کوم شیآنوحي تیمم جائزدی دهغوي پرکارولوباندی قدرت درلودل څو ک جي دد غوشیانوپراستعمال باندی قادرنه وی پرهغه باندی تیمم واجب نه دی.

(۶)دلمانځه دوخت تنګیدل،دوخت په پیل کي تیمم واجب نه دی.

(۷)دلمانځه دومره وخت موندل چي پکي په تیمامه دلمانځه کولوګنجایش وی،که څوک دومره وخت نشي موندلای نوپرهغه تیمم واجب نه دی.

(علم الفقه ص۱۰۲لومړی ټوک،کتاب الفقه ص۲۳۹لومړي ټوک،طهور المسلمین ص۸)

### دتیمم دصحت شرطونه

(۱) اسلام ،دکافر تیمم صحیح نه دی یعنی دکفر دحالت په تیمم تراسلام قبلولووروسته لمونځ جائزنه دی،هوداسلام قبلوولوپروخت چي کوم غسل مستحب دی که دهغه په بدل تیمم ووهی نوده ته دمستحب اداکولوثواب ورکول کیږي.

(۲)دتیمم نیت کول دکومی بې اودسی له امله چي تیمم ووهل شي یاله هغې څخه دپاکي نیت وشي ،یادکوم شئ لپاره چي تیمم ووهل شي دهغه نیت وي مثلا:که دجنازې دلمانځه لپاره تیمم ووهل شي یادقرآن کریم دتلاوت لپاره تیمم ووهل شي نوددې نیت دی وکي خولمونځ په هغه تیمم صحیح کیږي چي له بې اودسی څخه دپاکي نیت



پکی شوی وی ،یادکوم داسی مقصودی عبادت نیت وشي کوم چي بیله پاکي نشي کیدای مقصودي عبادت هغه عبادت دی :چي مشروع کیدل ئي یوائې دثواب اودالله ﷻ درضالپاره وی،دکوم بل عبادت دادایني لپاره نه وی مشروع شوی ،لکه لمونځ دقرآن تلاوت اونور... په خلاف دهغه اودس چي دقرآن کریم دمسحې ،مسجدته ددخول په نیت وي ځکه په دی کي یوائې دثواب نیت نه وی ،بلکه دنوروعبادتونوادائنه هم په نظرکي وي ،یعنی دلمانځه په تیمم خوقرآن کریم مسح کولای شي ،خودقرآن کریم اونورومسح کولولپاره په تیمم باندی لمونځ نشي اداکولای.

(۳)دټول مخ اودواړولاسونوپوره مسح کول.

(۴)پربدن دداسی شئ نه کیدل چي مسح ته خنډوی مثلا:روغن ،وازګه ،موم اوانګشتری.

(۵)په پوره دواړولاسونویادهغوئ په زیاتره برخه مسح کول.

(۶)په کوموشیانوچې غټه یاوړه بې اودسی راځي دتیمم پروخت دهغوي نیستی ،که کومه حائضه میرمن تیمم ووهی نوصحیح نه دی ،اوکه دداسی عبادت لپاره تیمم ووهل شی کوم چي بیله پاکي نشي کیدای لکه لمونځ دقران تلاوت اونور نودهغه لپاره داوبوله کارولومعذوریدل هم شرط دی. (علم الفقه ص۱۰۳لومړی ټوک)

### دتیمم سنت طریقه

مسئله:دتیمم طریقه داده :چي بسم الله الرحمن الرحیم ووایي ،اونیت وکړي خپل دواړه لاسونه پرداسی خاوره چي مرداری ورته نه وی رسیدلی یامرداری په پریمنځلولیري شیوی وی خپل دواړه لاسونه ورغو

لخوا وغوړوي (ښه دی وغوړوي) ودي وهي اوسره ودي مبني وروسته دی دواړه لاسونه راپورته کړي ودي څنډي بيادی پوره دواړه لاسونه پرخپل ټول مخ راتيرکړي په داسی ډول چي هيڅ ځآی داسی پاتی نشي چي لاس ورونه رسيږي بيادی دغه رنګه دواړه لاسونه پرخاوره ووهی سره ودي موښي اوبيادی خاوری ځينی وڅنډي اودکيڼ لاس دري ګوتې دی پرته دشهادت اوبټې ګوتی دښي لاس دګوتو پرسرو نو دشاپرخوا کښيږدی ترڅنګليو دی راکش کړی دارنګه چي دکيڼ لاس ور غوي هم ورسره ولګوي ،اوترڅنګليو مسح هم وشي بيادي پاتې ګوتې اودلاس ورغوي پردابل طرف کښيږدي ترګوتودي راکش کړی ،دغه رنګه دی دکيڼ لاس مسحه هم وکړي داودس اوغسل دتيمم ددواړو همدغه طريقه ده اويوتيمم ددواړولپاره کفايت کوی که ددواړو نيت وشي . (علم الفقه ص۱۰۶ لومړی ټوک ، منيه ص۲۹،شامی ص۲۶۴لومړي ټوک ،هدايه ص۶۲لومړی ټوک ،کبيری ص۶۴وطهورالمسلمين ص۲۲،مظاهر حق ص۴۷۹ج۱،شرح نقايه ص۲۶ج۱)

## دتيمم فرائض اوواجبات

(۱) دتيمم وهلوپروخت نيت فرض دی .

(۲) پرخاوره يادخاوری له قسم څخه پرکوم بل شي دوه ځله لاسونه وهل

(۳)ټول مخ ددواړو لاسونو په زياتره برخه مښل فرض دی .

(۴)له غړيو څخه دداسی شي ليري کول فرض دی چې دهغه له امله خاوره بدن ته نه رسيږي لکه تيل ،وازګه اونور...

(۵)دتنګي انګشتری ،تنګ ساعت ،اوبنګړيو ايستل واجب دی .

(۶) که په کوم دليل داوبونږدی والی معلوم شي نودهغه په پلټنه کي سل ګامه پخپله تلل ياڅوک ليږل واجب دی



(۷)که دچاسره اوبه وی اودهغه دورکولوهيله وي نوله هغه څخه غوښتل واجب دی. (علم الفقه ص۱۰۶،مظاهر حق ص۵۸لومړي ټوک)

## دتيمم سنت اومستحبات

(۱)دتيمم په پيل کي بسم الله ويل سنت دی .

(۲)په هغه ترتيب تيمم وهل سنت دی په کوم ترتيب چې رسول الله ﷺ وهلي دی يعنی لومړی دمخ مسح بيادداوړولاسونو.

(۳)پرپاکه خاوره دورغويولاندی خوامښل سنت دی نه دهغوئ شاه.

(۴)ترمښلووروسته ددواړولاسونوڅنډل سنت دی .

(۵)پرخاوره دلاس وهلوپروخت دګوتوخلاصول سنت دیٌ ترڅوخاوره دننه ورشي .

(۶)لړترلږه په دريو ګوتو مسح کول سنت دی.

(۷)لومړی دښي طرف مسح اوبيادکيڼ طرف مسح سنت دی .

(۸)په خاوره تيمم وهل سنت دی نه دهغې په جنس سره .

(۹)ترمخ وروسته دږيري خلالول سنت دی .

(۱۰)ديوه اندام ترمسح وروسته بيله دريدوددوهم اندام مسح کول مستحب دی .

(۱۱)دمسحې هم هغه ځانګړی طريقه مستحب ده کومه چې دتيمم په طريقه کی وليکل شوه

(۱۲)دچاچي دوخت په اخيرکی داوبومندولويقين ياغالب ګمان وی دهغه لپاره دلمانځه تراخيري وخته انتظارکول مستحب دی.دمثال په ډول له ښاه څخه داوبوراکښلوکوم شي نه وی اويقين ياغالب ګمان يي داوي چې دوخت په اخيرکي به رسی. ياسلواغه پيداشي ،ياکوم

شخص په اورګاډي کي سپوروی اوپه يقين سره ورته معلومه وی چي دوخت په اخيرکي به ريل ګاډی داسی تم ځای ته ورسيږي چي اوبه به پيدا شي. (علم الفقه ص۱۰۷ ج۱، کتاب الفقه ص۲۵۹ ج۱، کشف الاسرار ص۵ ج۲)

**داوبوله کارولودمعذورت صورتونه**

(۱) دومره اوبه چې اودس ياغسل ورباندی کيږي هلته نه وی بلکه ديوه ميل(يوکيلومتر۶۱۰متره) ياتريوه ميل زيات واټن وی.

(۲)اوبه موجودی وي خوامانت ياغصب شوی وی.

(۳)اوبه ترعام قيمت زياتی ګرانی وی.

(۴)داوبوقيمت ورسره نه ويواوبه که په قرض موندلای شی اوکه ئی نه شی موندلای اودقرض اخيستلوپه صورت کي پردی قادروی اوکه نه وی.(مراقی الفلاح) البته که دی مالداروی اوديوې معلومې مدې په تړاکلوئي قرض موندلای شوای نوقرض اخيستل په کاردی.

(۵)داوبوپه استعمال دکومی ناروغي دپيداکيدوياززياتيدو ويره وی ،ياداوبوپه استعمال کی دروغتياځنډ راځي.

(۶)دومره زيات يخ وی چې داوبوپه استعمال کی دکوم غړی دضياع ياکومې ناروغی پيداکيدوويره وي اوتودی اوبه نشي پيداکولای.

(۷)دکوم دښمن ياځناورويره وی مثلاً اوبه په داسی ځای کي وي چير ي چي ځناورا ونورراځي ياپه لاره کي دغلوخطره وی ياپرده دچاقرض وی يائي له چاسره دښمنی وی ،اودافکريي وي چي که اوبوته ورشم نوهغه پورراکونکی يادښمن به مې بندی کړی يابه کوم ډول تکليف راورسوی يادکوم فاسق سره اوبه وی اوومیرمنی ته له هغه څخه داوبوپه اخيستلو کی دخپل عزت ويره وی



(۸)اوبه يي دخوراک څښاک دارتياليپاره ايښي وي ،چی که په اودس ياغسل کي مصرف شي نوپه دې ارتياکي به ورته حرج وی ،مثلاً : داوړواخښلوياغوښواونورپخولولپاره ئي ايښې وی يااوبه دومره وي چي په اودس ياغسل کي صرف کړي نودتندي ويره وي ،که دخپلې تندی لپاره يادکوم بل چايادخپل څاروی لپاره وی ،په دې شرط چې کوم بل داسی چل نشی کيدای چې ورڅخه کارول شوی اوبه دحيوانانوپه کارراشي.

(۹)له څاه څخه داوبوراايستلوکوم شي نه وی اونه کوم تړوکروی چې په څاه کي يي واچوي لوندی ئي کړی اودهغه په نښتيځلواوبه حاصلی کړی يااوبه په منګی اونوروکی وی ،داوبوراخيستلوورسره کوم شی نه وی اودمنګی به کږولواوبه نشی تري راخيستلای اولاسونه مرداروی اوکوم بل داسی څوک هم نه وی چې اوبه ورته راوکاږي ،يادده لاسونه ورپريمنځي.

(۱۰)داوداسه ياغسل په کولوکې دداسی لمانځه دقضاويره وی چې خلف ياقضانه لری لکه :داختراوجنازي لمونځ.

(۱۱)داوبوهيريدل مثلا :له چاسره اوبه وی اودده هيري شوی اودده داخيال وی چی زماسره اوبه نشته.

(علم الفقه ص۱۰۴الومړی ټوک ،منية المصلی ص ۴۲،درمختارص۲۲۹الومړی ټوک ،بهشتی زيورص۶۷لومړی ټوک ،طهورالمسلمين ص۱۱)

مسئله:کوم شخص چی له اودس اوغسل کولودواړوڅخه معذوروی هغه په حالت دجنابت يعنی دناپاکی په حالت کی که يوتيمم دغسل اواودس په نيت ووهی نودده لپاره کفايت کوي.

(فتاوی دارالعلوم ص۲۶۳الومړی ټوک ،دردالمحتارص۲۱۴ج۱باب التيمم په حواله)

مسئله:فلج شوی مریض چې پخپله اودس نشی کولای اوبیله
تودواوبواودس نشی کولای که دده سره اودس ورکوونکی نه وی
یاتودی اوبه ورسره نه وی نودی تیمم وهلای شي .
(فتاوی دارالعلوم ص۲۶۵لومړی ټوک ،دردالمحتار ص۲۱۵ج۱باب التیمم په حواله)

**دسراوپښوتیمم ولی نشته ؟**

مسئله:په تیمم کی ددوواندامو خاصوالی ،دسراوپښونه مشروعیت
په دی وجه دی چې دخاورو پرسراړول ناخوښ اومکروه بلل کیږي
.ځکه چې دخاورو پرسراړول اودستونزواوتکلیفونو پرمهال په
خلګوکي رواج دی په دی وجه پرسرخاوري مبتل یعنی مسح کول
مشروع نه دی ځکه چې داعمل دالله ﷻ اوخلګوناخوښ دی اوپه
تیمم کي پرپښودلاس تیرولو حکم ځکه نه دی شوی چی پښې خوپخپله
په خاوروادوړو ککړی وی اوحکم دداسی شي ورکول کیږي چې له
مخکی څخه وجود نلري ترڅودډې په کولونفس ته خبرتیاورکړله شي
.(المصالح العقلیة ص۳۱)

**دغسل اواودس په تیمم کی دنه توپیروجه**

دجنب یعنی چې غسل وربانذی اوښتی وی اوبې اودسه دتیمم په
یوکیدوکی حکمت دادي :چې کله له بې اودسه سړی څخه پرلاسونو
اودمخ له مسحې کولووروسته دسراوپښومسح ساقط شوه
نوپرهمدغو اندامویعنی پرلاسونواومخ مسح کولووروسته دجنب
لپاره دټول بدن مسح په طریقه اولی سره ساقطیږي ،ځکه دټول بدن په
مسح کی تکلیف اوحرج دی ،کوم چې دتیمم درخصتی ضداومنافی
دی اوپرټول بدن په خاوره اړولوکی دالله ﷻ په مخلوق کی



ترټولوغوره یعنی دانسان په خاورواچولوکی دحیواناتو سره مشابهت
پیداکیږي ،نوکوم څه چې حق شریعت مقررکړی دی ،په حسن ښه والی
اوعدل کي له هغه څخه غوره یو شئ نشی کیدای .(المصالح العقلیة ص۳۰)
مسئله:داودس اوغسل په تیمم کي هیڅ توپیرنشته ،ددواړویوه
طریقه ده ،یوازې دنیت فرق لري.(آپ کی مسائل ص۶۴ج۲)
مسئله:څوک چې له اودس اوغسل کولوڅخه معذوروی ،هغه دی
دجنابت په حالت کي یوتیمم دغسل اواودس په نیت ووهی ،دده لپاره
کفایت کوي.(فتاوی دارالعلوم ص۲۶۳لومړی ټوک)
مسئله:لکه څرنګه چې بې اودسه سړی داوبونه موندلوپه صورت کي
په تیمم لمونځ کولای شي ،دغه رنګه څوک چې غسل ته اړوی هغه هم
داوبودنه موندلوپه صورت کي دغسل لپاره تیمم کولای شي .
(فتاوی دارالعلوم ص۲۵۲لومړی ټوک)

**دتیمم لپاره څومره غټه لوټه په کارده ؟**

مسئله:په تیمم کي زیات احتیاط دادی :چی لوټه دومره غټه وی چې
وربانذی په یوځل دواړه لاسونه وهلای شی ،یاچی لږترلږه دومره غټه
وی چې یوپوره لاس یعنی ورغوی سره له ګوتوورباندی راشی ،اوپه
پرلپسی دواړه لاسونه ورباندی وهلای شي ،ځکه چې دځینوعلماؤپه
نزد ضرب دتیمم رکن دی .(امدادالاحکام،ص۳۸۷لومړی ټوک)

**پریوه لوټه څوځله تیمم وهل**

مسئله:په ځینی مسجدونوکي دتیمم وهلولپاره دخاورویوګټی جوړ
شوی وی ددغې خاورې پرګټې څوځله تیمم وهل صحیح دی اوپردې

دحکمی نجاست اثرنه پریوزي په درمختار کي ثرګندونه شوی ده چي
:پریوه ځای ثوځله تیمم وهل صحیح دی .
(فتاوی دارالعلوم ص۲۶۱لومړی ټوک ،دردالمحتارص۲۲۰ج۱باب التیمم په حواله)

مسئله:که پریوه ځای اویوه لوټه ثوکسان پرلپسی تیمم ووهی
نوصحیح دی .(کبیري ص۸)

مسئله:که دتیمم وهونکی دلاسونوثنډل شوی خاوری جمع شی
پرهغوهم تیمم صحیح دی هیڅ پروا نلری.(کشف الاسرارص۲۵ج۲)

مسئله:دمسجدپرچونه شوی دیوال تیمم صحیح دی هیڅ پروا نلری.
(فتاوی دارالعلوم ص۲۶۲لومړی ټوک ،دهدایې ج ۱ص۵۳په حواله دتفصیل لپاره امدادالفتاوی ج۱ص۷۱)

مسئله:پرلرګي ،جامه بیله دوړوتیمم وهل صحیح نه دی دغه رنګه
دشنواووچووښوحکم دی ،اوپرډبره پوخ یاخام دیوال اوچونه بیله
غباره هم تیمم صحیح دی ،اوپرلرګی لږدوړه هم کفایت کوی .
(فتاوی دارالعلوم ص۲۴۴ج ۱،دغنیة ص ۷۴په حواله )

## دتیمم په لوټه استنجاء کول

مسئله:پرکومه لوټه چې تیمم وهل شوی وی په هغه یادهغې په کومه
برخه استنجاء وهل خوجائزدی خوښه نه دی ،فقهاء پرناپاک ځای
اودس کول دادب په خلاف بولی اووجه ئي همدغه لیکلی ده :چې
داوداسه اوبه داحترام وړدی ،نوهمدارنګه دتیمم لوټه هم ده
.(امدادالاحکام ص۳۸۷ج۱)

مسئله:دتیمم لپاره ضروری ده چې خاوره پاکه وی ،ناپاکه زمکه چې
وچه شوی وی دهغې استعمال دتیمم لپاره دمستعملواوبوپه ثیرده
،یعنی په خپله خوپاکه ده اماپاکوونکي نه ده ،،پرداسی ځمکه



تروچیدو وروسته لمونځ کول خوروادی خوپه دې سره تیمم صحیح نه
دی . (کشف الاسرارص۳ج۱)

مسئله:پرپاکه لنده خاوره چې اوبه وربانْدی غالبی نه وی تیمم جائز
دی،خوپه لنده خاوره تیمم هغه وخت وهل پکاردی چې دوخت دفوت
کیدو ویره وي ترثوبیله اړتیاخپله بنه بدله نکړی. (کشف الاسرارص۱۲ج۲)

**په کوموشیانوتیمم رواوپه کومونارروادی ؟**

(۱)خاوره یادخاوری له جنس ثخه چې کوم شئ وی پرهغه تیمم
جائزدی اوکوم شی چې دخاورې له جنس ثخه نه وی ،پرهغه تیمم
جائزنه دی ،کوم شیان چې په اورکي په سوځولوسره نه نرمیږي اونه په
سوځیدوسره ایره کیږي اوهغه شیان دخاورې له جنسه دی لکه شګه
،دډبروقسمونه عقیق ،زبرجد،فیرزه ،سنګ مرمر،هړتال ،اونور،او
کوم شیان چې په اورکي نرمیږي یاایرې کیږي هغه دخاورې له جنسه
نه دی ،لکه :کپړه، لرګي اونورپه سوځیدلوایره کیږي ،اوسره زر،
سپین زراونورچې په اور نرمیږي په دغوتیمم جائزنه دی۔

(۲)کوم شیان چې دخاوری له قسم ثخه نه وی ،که پرهغوي دوړه پرته
وی نوپرهغوی ددغه ګرځ په وجه تیمم جائزدی .

(۳)که پرکوم مردارشئ دوړه پرته وی نوکه هغه ګرځ پدې دوچوالی
په حالت کي پریوتلی وی اودتیمم وهلوپروخت دکومې مرداری
دراوتلوویره نه وي ،نوپه دې سره تیمم جائزدی کنه نه دی .

(۴)پرکوم حیوان یانسان پاپرخپلو اندامو که دوړه پرته وی نوپرهغه
تیمم جائزدی لکه چې چا جارووواهودهغه په وجه دوړه پرمخ
اولاسونوپریوته اوپه لاس ئي ومښله نوتیمم صحیح دی .

(۵)که کوم داسی شئ چي وربانذی تیمم جائزنه وی دخاوری اونوروسره یوځای شی نوغالب ته اعتباردی ،که خاوره اونورغالب وی نوتیمم جائزدی کنه نونه دی جائز.

(علم الفقه ص۱۰۵ج۱،هدایه ص ۲۶ج۱،شرح نقایه ص ۲۶ج۱کبیری ص ۷۶)

مسئله:دیوال که دډبرو وي یادپخو خښتو وی یادخاموخښتوپه دې شرط چي فاک وی تیمم وربانذی جائزدی.

(نمازکی مسنون اعمال ص ۱۳۹،احسن الفتاوی ص۵۷ج۲،ردالمحتارص۲۲۰ج۱)

مسئله: پرغله مثلاًاوربشویاغنمواوبل داسی شی که ګرځ ،غباروی نوتیمم وربانذی جائزدی کنه نونه دی

(شرح وقایه ص۹۰ج۱کبیری ص۷۶،کتاب الفقه ص ۲۵۵ج۱،طهورالمسلمین ص۱۷.)

**دتیمم احکام**

مسئله: دکوموشیالپاره چي اودس فرض دی دهغوي لپاره داودس تیمم هم فرض اودکوموشیانولپاره چې اودس واجب دی دهغوي لپاره داودس تیمم هم واجب دی اودکوموشیانولپاره چي اودس سنت یامستحب دی دهغوي لپاره داودس تیمم هم سنت یامستحب دی اوهمدغه حال دغسل دتیمم دی پرغسل دي قیاس کړی .مثلاً:له اودس کولوڅخه معذوردی نودی چی داودس پرځای کوم تیمم ووهی هغه تیمم فرض دی ،علی هذالقیاس.

مسئله: که پرچاغسل اوښتی وی اومسجدته دتلودده سخت ضرورت وی پرده تیمم وهل واجب دی.

مسئله: دکوموعبادتونولپاره چي له دواړوبې اودسیوڅخه پاکی شرط نه وی لکه سلام ،دسلام ځواب اونورددوي لپاره داودس اوغسل دواړوتیمم بېله عذره کیدای شی اوپه کوموعبادتونوکي چي



یوائي،له کوچنی بې اودسې څخه پاکی شرط نه وی لکه له لاس وروړولوپرته دقرآن کریم تلاوت یااذان اونور،ددوي لپاره صرف داوس تیمم بېله عذره کیدای شی.

مسئله: که له چاسره شکمنی اوبه وی لکه دخره پسخورده نوپه داسی حالت کی دی اودس یاغسل وربانذی وکړی تردی وروسته دی تیمم ووهی-

مسئله:که هغه عذر چی په وجه ئی تیمم وهل شوی وودبندګانوله طرفه وونوکله چې هغه عذرختم شی نوڅومره لمونځونه چي یې په دغه تیمم کړی وی ټول بیرته راګرزول پکاردی مثلاً یوسړی بندی اودمحبس مامورینوده ته اوبه نه ورکولي ،یاچاده ته ویلي ووکه تااودس وکړنوزه تاوژنم ،اونور...

(علم الفقه ص۱۰۵ج۱،طهورالمسلمین ص۲۸،کشف الاسرارص ۲۵،ج۲)

**په کوموشیانوچې تیمم ماتیږي**

مسئله:په کوموشیانوچي اودس ماتیږي په هغوشیانوداودس تیمم هم ماتیږي اوپه کوموشیانوچي غسل واجبیږي په هغوشیانوتیمم هم ماتیږي.

مسئله:که داودس اوغسل دواړولپاره یوتیمم ووهل شی نوکله چې اودس مات شي نوهغه تیمم داودس په هکله ماتیږي اودغسل په هکله باقي پاتیږي ترڅودغسل وجبوونکی شی ونه موندل شي.

مسئله:دکوم عذرپه وجه چي ئي تیمم وهلی وو،دهغه په زوال تیمم ختمیږي که څه هم تردی وورسته سمدستی بل عذر پیداشی مثلاً:کوم

شخص داوبونه موندلوپه وجه تیمم وهلی ووبیاچي کله اوبه وموندلی شوی نودی ناروغ شو(بیادی دناروغی تیمم جلاووهی)

مسئله: که څوک ویده وی داوبوسره تیرشی نودده تیمم نه ماتیږي ځکه دی په داسی حال کې اوبوته ورسیدی چې پکی داوبو پرکارولو قا در نه ووخوپه دې کي شرط دادی : چې داسی ویده وی چې اودس یې نه ماتیږي یایي دغسل په بدل کی وهلی وی مثلاً کوم سړی پرآس یاګاډ ی کي ناست ویده شی اوپه لاره کي کومه چینه یاویاله راشي نودده تیمم نه ماتیږي. (فتاوی قاضی خان ،فتح القدیر)

داشرط ځکه لګول شوی دی چی که داودس تیمم وی اوداسی ویده شی چې اودس په ماتیږي نودده تیمم په ویدیدوماتیږي اوبوموندلوته به اثرپاته نشی.

مسئله: که کوم سړی په ریل ګاډی یاالوتکه کي سپوروی اوده داوبو دنیستی په جه تیمم وهلی وی اوپه لاره کی په روانه ګاډي کي دده په نظرداوبوچینه یاویاله راشی نودده تیمم نه ماتیږي ،ځکه په دې صورت کی دی داوبوپراستعمال قادرنه دی .

(علم الفقه ص ۱۰۸ ج ۱،منیه ص ۳۰،دُرمختار ص ۴۳ ج ۱)

مسئله: تیمم په هرهغه شی ماتیږي چې اودس ورباندی ماتیږي اوتیمم کوونکی سړی چې داوبونه موندلوپه وجه ئی تیمم کړی وی که اوبه ووینی اوپرکارولوئی قادروی نودهغه تیمم ماتیږي .

(هدایه ص ۲۷ ج ۱،شرح نقایه ص ۲۷ ج ۱ ،کبیري ص ۸۴)

مسئله: پرچاچي غسل واجب وی که هغه دشرعی عذرله امله تیمم ووا هونوددغه شرعی عذر په ختمیدودغه تیمم هم زائلیږي ،مثلاً:



داوبونه موندلوپه جه ئي تیمم وهلی وو ،نوکله چې هغه پراوبوباندی قادرشی نودجنابت تیمم ماتیږي ،یایي دیوې ناروغی له وجې تیمم وهلی وو نوکله چې داناروغي ښه شي نوتیمم ماتیږي ،یاکومه خبره دغسل واجبوونکی وموندله شی نوتیمم ماتیږي اوپه نواقض یعنی داوداسه په ماتوونکوشیانومطلقاً داتیمم نه ماتیږي ،مثلاً :دده دناروغی په وجه دجنابت تیمم وواهویایي داوبونه موندلوپه جه تیمم وواهواوبیااودس ماتوونکی شئ ورپیښ شونوپه دې سره دجنابت تیمم نه ماتیږي . یواځي داودس تیمم ماتیږي دغسل تیمم باقی دی ،داودس لپاره دی بیاتیمم ووهی .

(فتاوی دارالعلوم ص ۲۵۹ ج ۱،درالمحتار ج ۱ ص ۲۳۴ باب التیمم په حواله)

## دتلاوت په نیت وهلی تیمم لمونځ کول څنګه دی ؟

پوښتنه:-یوه ناروغ ته اوبه زیانمنی دی ده دقرآن کریم دتلاوت لپاره تیمم وواهونوپه دې تیمم لمونځ کولای شی کنه ؟

ځواب:-قاعده داده چې که دکوم عبادت لپاره تیمم ووهل شی کوم چې ذاتاً مقصودی وی اودهغه لپاره طهارت (پاکی) هم ضروري وی نوپه دغه تیمم لمونځ صحیح دي کنه نه دی صحیح ،پورته بیان شوی دواړه شرطونه که وموندل شی نوپه دې سره لمونځ صحیح کیږي اوکه دواړه شرطونه یاله دواړوڅخه یونه وی نوپه دې تیمم لمونځ نشی کولای ،نوکه بې اودسه سړی په خوله تلاوت کولولپاره تیمم وواهونوپه دې کې دوهم شرط نشته یعنی طهارت ضروری نه دی (ځکه چې په خوله تلاوت لپاره اودس ضروري نه دی )اوکه قرآن کریم ته لاس وروړلولپاره تیمم وواهونولومړی شرط نه دی موجودشوی

یعني دامقصودی عبادت نه دی ،ځکه په دې دواړوصورتوکی په دې تیمم لمونځ نشی کولای خودتیمم پرمهال که صرف دتلاوت دنیت پرځای دکامل طهارت نیت وکړی نوپه دې سره لمونځ هم صحیح کیږي ،اوکه ناپاک سړی چې غسل ته اړوی دتلاوت په نیت تیمم وواهونودی په دې تیمم لمونځ کولای شي ځکه چې تلاوت مقصودی عبادت دی اوددې لپاره له جنابت څخه پاکی هم شرط ده. (احسن الفتاوی ص۶۰ ج ۲ ،دردالمحتارص۲۲۶ج۱په حواله)

مسئله: داوبوپه موجودیت کی دروغ سړی دقرآن کریم دتلاوت لپاره تیمم وهل صحیح نه دی.

(فتاوی دارالعلوم ص۲۶۴ج۱دردالمحتارص ۲۲۶ج۱په حواله)

**په ناروغي کي دمریض طبیعت ته اعتباردی که طبیب ته ؟**

پوښتنه :- دناروغی پرمهال چې کوم تیمم جائزدی په هغه کی دناروغه وطبیعت ته اعتباردی که وماهر طبیب ته ؟

ځواب:-ددرمختار له عبارته معلومه شوه چې په تیمم کی دناروغ وطبیعت ،تجربه اوغالب گمان ته هم اعتباردی اودماهر طبیب ووییناته هم ،په دې کی چې هریووموندل شي تیمم جائزدی.

(فتاوی دارالعلوم ص۲۵۸ج۱دردالمحتارص ۲۱۵ج۱په حواله)

**دوخت دتنگي له وجې تیمم وهل**

پوښتنه : سهارناوخته سترگی خلاصی شوی چې که اوبه تودوي نود لمانځه وخت ختمیږي نوایالمونځ کونکی داداء په وخت کي په تیمامه لمونځ کولای شی ؟ځکه چې دیخ په وجه په سړواوبونشی لمبیدلای .

ځواب : کله چې دی پرتودواوبوقدرت لری نوتیمم جائزنه دی دلمانځه قضاء دی راوړی خوغسل او اودس دی هرومرو وکړی .

(فتاوی دارالعلوم ص ۲۴۳ج۱ دردالمحتارص ۲۱۶ج ۱باب التیمم په او احسن الفتاوی ص۵۴دوهم ټوک)



**پرناروغ که مرداری ولگیږي اواوبه ورته تاوان کوی!**

پوښتنه:- دناروغ پربدن نجاست لگیدلی دی ،اوبه ورته تاوان کوی نوڅنگه پاکی حاصله کړي ؟

ځواب:- پربدن که مرداری وی نوهغه دی ومنځی ،وروسته دی تیمم ووهی.(فتاوی دارالعلوم ص۲۴۴ج ۱دردالمحتارج ۱ص۲۱۵ اوص ۳۰۲باب الانجاس په حواله )

مسئله:کوم ناروغ چې اودس کولای شي خوله غسل کولومعذوروي دهغه لپاره دجائزدی چې اودس وکړي اودغسل پرځای تیمم ووهي.

(فتاوی دارالعلوم ص۲۶۲ج۱عالمگیري ص۲۶ج۱)

مسئله:پرچاچې غسل واجب وی له هغه سره صرف داودس وړاوبه وی اوبدن ئي هم مرداروی نوهغه دی ناپاک بدن پریمنځی اوغسل او اودس لپاره دې تیمم ووهی.

(فتاوی دارالعلوم ص۲۶۲ج۱ دعالمگیری ج۱ص۲۸باب التیمم په حواله )

مسئله: پرچاچې غسل واجب وی له هغه سره صرف داودس وړاوبه وی دغسل وړنه وی په دې صورت کي دواړه ډوله جائزدی چې دلمانځه لپاره اودس اوغسل لپاره تیمم که مخکې تیمم وهی اوکه اودس کوی اوبیادجنابت تیمم ووهی دواړه رنگه جائزدی.

(فتاوی دارالعلوم ص۲۶۲ج۱)

**هره شپه احتلام کیدوونکی لپاره تیمم وهل**

پوښتنه:-ماته داحتلام عارضه راپیښه ده شایدچې داسی شپه به وی چې احتلام ونشي اوس موسم دیخ دی دسهارلمونځ دجنابت په حالت کی وکوم ؟ځکه چې سهارپه غسل کولوراته دناروغی اندیښنه ده ؟

ځواب: شرعي حکم په داسي صورت کې دادی :که په تودواوبوغسل کول زیانمن نه وی نوپه تودواوبوغسل کوه اودسهارلمونځ پروخت اداء کړه اوکه له تودواوبوڅخه هم دناروغه کیدوغالب گمان وی یاتودی اوبه نه وی نوتیمم وهه دسهارلمونځ پروخت اداکړه اووروسته پریوولس بجې له عادت سره سم غسل وکړه (کله چې غسل تاوانی نه وی) نورلمونځونه پخپلووختونوکی اداکړه .(فتاوی دارالعلوم ج ۱ص۲۵۸دغنیة ص۶۴په حواله)

مسئله:دغسل اواودی تیمم یودبیوتیمم ددواړولپاره کفایت کوی .

(فتاوی دارالعلوم ص۲۴۸ج۱وهدایه ص۲۵ج۱،کبیری ص۸۱،کتاب الفقه ص۲۶۳ج۱)

**کومه میرمن چې په غسل کولوکې په تکلیف کیږي**

پوښتنه : دزیدیوه کوروالاده زیاتره هغه ناروغه وی اوکله چې داغسل وکړی نودکمزوری په وجه کله زکام شی اوکله ئی پرسراوغوږدردوی له همدې ویری دادخپل خاوندخواهش یعنی کوروالی نه غواړی ،چې له دې کبله دزیدپه گناه کې دواقع کیدوویره ده په دی صورت کې دزیدکوروالاپه تیمم لمونځ اداکولای شی کنه؟

ځواب :په درمختارکې دی:چې که میرمنی ته دسرمینځل تاوان کوی نو سردی نه پریمنځی اودسرمسح دی وکړی اوزیات احتیاط په همدې کې دی په بل ځای په درمختارکې ئې داواجب لیکلی دی :یعنی که دسر مسح کولای شی اوپه دې کې دناروغی ویره نه وی نودسرمسح دی وکړی کنه نوپرسردی پټی وتړی مسح دی وربانذی وکړی ،اودغه میرمن دی خاوندله کوروالی نه منع کوی ،اوپه یوه روایت کی داهم رانقل شوی دی :چی که دچاپه سرداسی دردوی چې



مسح هم نشي کولای نوهغه دی تیمم ووهی ،اودشامی په دې اخیرنی عبارت کی څرگندونه شوی ده چې روغ سړی ته که له غسل کولوڅخه دناروغی اندیښنه وه دغالب گمان یامخکینی تجربې په موافقت وی نودی تیمم وهلای شی .ځکه نوپه دغه صورت کی دی دغه میرمن تیمم ووهی اوخاونددی له کوروالی څخه نه منع کوی ،ددې ناروغی ترزائلیدو ددې لپاره تیمم وهل صحیح دی بیاچې کله داویره ورکه شي نوبیادی غسل کوي .

(فتاوی دارالعلوم ص۲۶۴ج۱درداالمحتارج۱ص۱۴۲اوباب مسح علی الخفین ج۱ص۲۳۹په حواله)

**دبوډاتوب په وجه تیمم وهل ؟**

پوښتنه :- که چاته دناتوانی اوناروغی یابوډاتوب په وجه اوبه تاوان کوی یادتاوان ویره ورسره وی یاداوبوکارول وده ته گران اوسخت وی زغملای ئی نشی نوایادی تیمم وهلای شي ؟

ځواب : دعذرپه حالت کی تیمم لکه څنگه چې داودس پرځای وهل کیږي دغه رنگه دغسل پرځای هم کیږي اوپه دغه تیمم فرض اونفلي لمونځ ،تلاوت اونورټول صحیح دی ،اوهغه عذر چې په وجه دبې اودسی اوجنابت تیمم صحیح دی دادی :چې مریض ته دناروغی دزیاتیدویااوږدیدوویره وی یعنی په اودس یاغسل کولوبه دده مرض زیات شي یابه اوږ دشي یابه دیخ په وجه هلاک شی یاناروغ شی ،یوائې په دې وجه چې سړې اوبه خوندنه ورکوی اوورڅخه په تکلیف کیږي تیمم صحیح نه دی بلکه دمړه کیدویاناروغه کیدوورته اندیښنه وی هغه وخت تیمم صحیح دی.(فتاوی دارالعلوم ص۲۴۹ج۱ درداالمحتارج۱ص۲۱۸په حواله)

مسئله:ترڅوچې دناروغۍ وغیره کوم عذرنه وی دده لپاره تیمم صحیح نه دی اوکه دیخ په موسم کی له سړواوبوڅخه دتاوان رسیدواندیښنه وی نوکه داوبوتودولوقدرت وی نواوبه دی تودی کړی اودس دی په وکړی ،تیمم په داسی حالت کی صحیح نه دی .
(فتاوی دارالعلوم ص۲۵۷ج۱دعالمگیری ج۱ص۳۶په حواله)

**په تبه کی تیمم وهل**

مسئله: تبه که داسی وی چې له اوبوڅخه تاوان یادناروغۍ دزیاتیدو اندیښنه وی نوپه تیمم لمونځ صحیح دی . (فتاوی دارالعلوم ص۲۵۷)

**دتبې په اندیښنه تیمم وهل**

پوښتنه : یوه سړي ته په سړواوبواودس کولوڅخه دتبې اندیښنه ده که دی په تودواودس کول وغواړی نوده ته یادده کوروالاته په اوبوتودولوکي تکلیف وی نوایادی تیمم وهلای شی ؟
ځواب: کله چې داوبوتودولواواودس کولوتوان شته نودده لپاره تیمم وهل صحیح نه دی .(فتاوی دارالعلوم ص۲۵۷ج۱دعالمگیری ج۱ص۲۶باب التیمم په حواله)

مسئله:که داوبوپه استعمال دمریض دمرګ یاناروغي زیاتیدواندیښنه وي یاداویره وي چې داوبوپه استعمل به ناروغي وړده شي نوپه ټولوصورتوکي تیمم رواکیږي ،که څوک فعلاً روغ دی خوغالب ګمان یې دي چې داوبوپه کارولوبه ناروغ شم نوتیمم جائزدی ،که اودس کولای شي خوغسل ورته تاوان کوي نواودس دی هم وکړي اودغسل پرځاي دی تیمم ووهی،اوکه له سړواوبوڅخه دناروغۍ اونورواندیښنه وی اوتودی اوبه نه پیداکیږي نوتیمم جائزدی ،که دومره زیات یخ وی چې په تودواوبوپه غسل کولوکي



دناروغۍ یامرګ اندیښنه وه نوتیمم جائزدی داصورت که په ځنګل کي ورپیښ شی یاپه کلی کي

یادونه : له دې څخه دڅوک دانه فهموی چي په سخت یخ کي همیشه تیمم جائزشوځکه چي په ډیرزیات یخ کي په تودواوبوله غسل کولو څخه څوک نه ناروغه کیږي ،اونه مری ،خوکه په کوم ځانګړی ځای کي اتفاقاً داسی یخ وی چي تودی اوبه هم زیانمنی وی اوکومه داسی کپړه اونورڅه نه وي چي ترغسل وروسته ئي پرځان واچوي اوځان په تودکړی هلته تیمم رواکیږي . (طهورالمسلمین ص۱۴)

**په ریل ګاډي اوبس کي دتیمم شرطونه**

مسئله:په اورګاډي اوبس کي په تیمم دلمانځه صحیح کیدولپاره لاندینی شرطونه دی:
(۱)دریل ګاډي په یوه ډبه کي هم اوبه نه وي .
(۲)پرلاره په یوه شرعی میل (۱۸ء۳کیلومتره) کي دننه داوبودشتون خبرتیا ورته نه وي .
(۳)دریل ګاډي یاموټر پرتخته دومره دوړه وی چي په اسانی سره پرلاس لګی نوپردی دی تیمم ووهی .
له دغوڅخه که پریوه شرط قدرت نه وي نوڅنګه چي ممکن وی ادادي کړي ،خووروسته به قضاراوړی .(احسن الفتاوی ص۵۵ج۲،دردالمحتارج۱ص۲۱۷په حواله)

مسئله:که په ریل ګاډي کي یقین وی چي دلمانځه پروخت اوبه موندلای شی نولمونځ ځنډول مستحب دی ،که اوبه پیداشوي نوپه اوداسه دی لمونځ اداکړی که پیدانشوی اودوخت پای ته رسیدواندیښنه وی نوپه تیمم دی لمونځ اداکړی .

مسئله: دریل ګاډي پراستیشن که اوبه ورکونکی نامسلمان وی نودهغه په اوبواودس کول جائزدی هوکه یقین وی چې لوښی مرداردی نوتیمم وهل جائزدی. (فتاوی دارالعلوم ص۲۵۰ج۱، دردالمحتار ص۲۱۴ج۱په حواله)

[پراستیشن چې کومې اوبه ورکول کیږي هغه اکثره پاکي وی اودهغوي لوښی هم ځکه شک نه دی کول په کار. رفعت قاسمي غفرله

**دزخمی اوچیچک (کوي) دناروغ لپاره دتیمم حکم**

پوښتنه: که پرپښواومخ دخارش دانې وي اواوبه ورته تاوان کوي نوایاآداسړی داودس اوغسل لپاره تیمم وهلای شي؟

ځواب ک که داوداسه داندامونو (مخ، دواړولاسونو، اوپښو) پرزیاتره برخه زخمونه وي نوتیمم دی ووهی، کنه روغ غړی دي ومنځي اوپرزخمی برخه دی مسح وکړی اودغسل هم همدغه حکم دی، خوپه هغه کي دغړودشمیرپرځای وټول بدن ته کتل کیږي، که ترنیمایي زیات بدن باندی ټپونه وی نوتیمم دی ووهی اوکه پرنیم بدن یاترهغه پرکم وی نومسح دی وکړي اوکه پردوغ بدن په اوبوبهیولودزخمی برخې له اوبوساتل ګران وی نودومره روغه برخه هم دزخم په حکم کي شمیرل کیږي.

(احسن الفتاوی ۵۸ج۲، دردالمحتار ص ۲۳۷ ج۱په حواله)

مسئله: که پرټپ یاپټی مسح نشی کیدای نوبیاتیمم صحیح دی.

(فتاوی دارالعلوم ص۲۶۴ج۱، دردالمحتار باب المسح علی الخفین ص ۲۵۸ ج۱په حواله)

مسئله: که پردواړولاسونودانې وی اواوبه ورته تاوان کوی نوتیمم صحیح دی خوکه کوم بل څوک اودس ورکوونکی وی نودتیمم په جوازکي اختلاف دی راجح اواحوط عدم جوازدی.

(احسن الفتاوی ۵۶ج۲، دردالمحتارج۱ ص۲۴۸په حواله)



مسئله: که پرټول مخ دانې وي چې نوونه اووینې پکښې وی، داوبوپه لګیدوله دانووینه راوزي، که په رشتیاهم دومره تکلیف وی اومسح هم نشی کولای نوتیمم جائزدی.

(آپ کی مسائل ص۶۵ ج۳، تفصیل مظاهر حق ج۱ص۴۷۵)

مسئله: که دچاترنیم بدن زیات باندی زخم وی یادکوي دانې وی نولمبیدل واجب نه دی بلکه تیمم دی ووهی. (بهشتی زیور ص۶۷ج۱، دمنیه ص۲۲په حواله)

مسئله: که پربدن ځای پرځای زخمونه وی یادکوي دانې وی نوتیمم جائزدی، که ځای پرځای نه وی پریوه ځای دبدن ترنیمه برخه زیاتی وی، بیاهم دغسل پرځای تیمم جائزدی، اودنوروغړیوپریمنځلوته اړتیانشته که له ځلورواندامو صرف یوروغ وي نوداودس پرځای تیمم وهلای شي ددغه اندام ومنځلوته ضرورت نشته مثلاً: مخ روغ وی، لاس، پښې اوسرزخمې وی نوتیمم دی وکړی، ومخ منځلوته اړتیا نشته، دغه رنګه که لاسونه، پښې اومخ زخمې وی صرف سر روغ وی نوتیمم جائزدی، دسرمسح دی نه کوی یعنی سردی نه منځي.

قاعده داده: چې په اودس کي دغړیووشمیرته اعتباردی که یویادوه غړي زخمي وي نواودس کول پکاردی، روغ اندامونه دي پریمنځي اوپرنورودي مسح وکړي اوکه په دریواندامونو کي عذروي نواودس معاف شو، اوس دي تیمم ووهي کومه برخه چې روغه ده هغه دي هم نه پریمنځي اوپه غسل کی ومساحت اوپیمائش ته اعتباردی کله چې ترنیم بدن زیات پریمنځوڅخه معذوروي نوتیمم جائزدی اوکله چې زیاته برخه روغه وي نودهغي پریمنځل پرنوربدن مسح کول ضروري دی. په غسل کي دغړیووشمیرته اعتبارنشته.

وګورئ! که څوک له سيني څخه ترپښوزخمي وي نوتيمم جائزدی حال دادی چې کوم اندامونه روغ دي هغوئ په شميرکي زيات دي(مثلاً لاسونه،سر، سترګي،پوزه،غوږونه اونور..) که لاسونه داسي زخمي وي چې په اوبوکي ئي نه شي اچولای اونوراندامونه هم نه شي پريمنځلای نوتيمم جائزدی ،خوغوره دادی چې دکوم بل چاپه مرسته اودس وکړي،که ترنيمايي کم بدن زخمي وي خوپرروزغ ځای داوبو پريوتوپه وجه وزخموته تکليف رسيږي نوتيمم جائزدي .
داوبوزيان رسولواوناروغه کيدويادناروغئ زياتيدوانديشنه په همدي حال کي معتبره ده چې په خپله له خپل عادت څخه معلوم وي ياله عامي تجربي اوليدني څخه معلوميږي ياکوم مسلمان باوري طبيب ورته ووائي چې تاوان کوي ياناروغي زياتيږي يابه په ځنډسره ښه شي . (طهورالمسلمين ص:۱۵)

## دجنازي لمانځه اومؤکدسنتودپاره تيمم وهل

مسئله: قاعده داده چې که دکوم عبادت فوت کيدوخطروي اوهغه قضاء هم نه لري نوسره له دي چې اوبه وي دده دپاره تيمم جائزدي .ځکه که دجنازي دلمانځه ترآخري تکبيرمخته دګډون هيله وي نوتيمم جائزنه دي کني په تيمم کولوبرخه پکي اخيستلاي شي .
داختردلمانځه هم همدغه حکم دي چې دامام دفارغيدوويره وي نوپه تيمم وهلو دي ورګډشي (کله چې بل ځاي هم داختردلمانځه موندلو هيله نه وي) همدارازدمؤکدسنتونوقضاء خونشته ځکه که دهغوئ دفوت کيدوويره وي نوهم سره له دي چې اوبه موجودي وي تيمم دي ووهي سنتونه دي اداء کړي .
(احسن الفتاوی ص: ۵۹ج ۲دردالمحتارج ۱ص۲۲۴په حواله اومظاهرحق ص۴۷۹، فتاوی رشيديه ج۱ص ۲۸۴)



مسئله: که دجنازي دلمانځه تيريدوويره وي نوپه تيمامه دجنازي لمونځ کولای شي په دي شرط چې دمړي ولي نه وي . (ځکه چې دجنازی لمونځ دمړي دولي پراجازه موقوف دی )
(هدايه ص۴۸ج۱ ،شرحی نقايه ص۲۵ ،کبيری ص۱۸)
مسئله: کوم مړي ته چې غسل ورکول ممکن نه وی هغه ته دی تيمم ورووهل شي اودفن دي کړل شي .(شامی ص۲۳۶لومړی ټوک)
مسئله: په بيړه تيمم وواهو دجنازي په لمانځه کي شريک شو،(دجنازي لمونځ خوصحيح شواما) په دي تيمم وختی فرض لمونځ نشي کولای .په اودس کولو وختي لمونځ کول په کاردی .
(فتاوی دارالعلوم ص۲۴۵ج۱دردالمحتارباب التيمم ج۱ص ۲۲۳په حواله)
مسئله: که دجنازي دلمانځه دټولوتکبيرونوتيريدوويره وي نوتيمم وهلای شي که څه هم تيمم وهونکی جنب نارينه اوښځينه وي،خوکه داسي نه وی يعني دتکبيرونوموندلوغالب يقين وي ياورته معلومه وي چې دده انتظاربه لازماً کيږي نوتيمم صحيح نه دي .
مسئله: يودجنازي لمونځ ئي په تيمم کړي وُچې دوهمه جنازه راوړله شوه که دغه تيمم کونکي ته ددي دواړوجنازوترمنځ اودس کول ممکن شوي ووخوبيادغه امکان ياقوت زائل شونوددوهمي جنازي دپاره دي دوهم ځل تيمم ووهي،که ددواړوترمنځ داودس کولوقدرت ونه موندي نودوهم ځل وتيمم ته اړتيانشته ،په اولني تيمم به دجنازي لمونځ کوي . (کشف الاسرار جلد۲صفحه ۱۵)
(دلته خودتيمم مسئلې رواني وي ځکه داڅومسئلي مي بيان کړي، نوردمړي دغسل بشپړي مسئلې دغسل مسئلي په نوم کتاب کي

وګورئ،اودعاء کوي په آئنده کي دمړي مسئلي ليکلوخيال مي ددوستانوپه تينګارشته،چې پکي به دمرګ آثار،غسل،کفن،جنازي لمانځه،دفن پرقبردتختي اونورولګولو،ايصال ثواب،روح اونوروپه اړوندتفصيل وي .انشاالله . دعاغوښتونکی محمدرفعت قاسمی غفرله

**دتيمم بيلابيلي مسئلې**

مسئله: داوبوپه موجوديت کي دقرآن کريم مسح کولودپاره تيمم صحيح نه دي . (فتاوی دارالعلوم ص۲۶۰،ج۱ دردالمحتارج۱ ص ۲۲۵په حواله)

مسئله: که دقرآن کريم مسحه کولودپاره تيمم ووهي نوپه دي سره د جنازی لمونځ کول نه دی صحيح اوکه ديوه لمانځه دپاره تيمم ووهي ددوهم وخت لمونځ هم په دي کول صحيح دی اودقرآن کريم مسحه کول هم په دي تيمم صحيح دي .

مسئله: که څوک ولمبيدلوته اړوي (يعني دغسل اړتياورته پيداشوي وي)او اودس هم نه لري نويوتيمم دي ووهي ددواړودپاره جلاجلاتيمم ته اړتيانشته .

مسئله: چالمونځ په تيمم اداء کړييائي اوبه وموندلي اودلمانځه وخت هم پاتي دي نوودوهم ځل لمونځ کولوته اړتيانشته هم هغه لمونځ په تيمم صحيح کيږي . (بهشتي زيورص ۷۰ ج۱منيه ص۲۹)

مسئله: که تيمم داوداسه پرځای وي نوداودس په موافق اوبه موندلو تيمم ماتيږي،اوکه تيمم دغسل وي نوکله چي دغسل په موافق اوبه پيداشي نوتيمم ماتيږي که اوبه کمي پيداشي نوتيمم نه ماتيږي .



مسسله : که چادناروغئ له امله تيمم وهلی دی نوکله چې ناروغي ختمه شي چې اودس اوغسل ورته تاوان نه کوي نوتيمم ماتيږي ،اوس اودس کول اوغسل کول واجب دي . (بهشتي زيورج۱ص۷۰)

مسئله: په څومره شيانوچې اودس ماتيږي په هغوئ تيمم هم ماتيږي اوداوبوپه پيداکيدلوسره هم ماتيږي . (بهشتي زيورص۷۰ج۱ شامی ج۱ص۲۶۴په حواله)

مسئله: کوم شی چې دعذرپه وجه رواشي،دهغه عذرترزائليدو وروسته هغه باطليږي .(کشف الاسرار ص۲۸ج۲)

مسئله: که پرډبره يومخ دوړه نه وي بياهم تيممورباندي صحيح دی،پرلاس دګرځ لګيدل هيڅ ضروري نه دی،همدارازپرپخه خښته هم تيمم صحيح دي دوړه که پروي اوکه نه وي .

مسئله: پرځمکه که دبولواونورومرداريځ ولګي اوپه لمروچه شي اوبد بوي ئي ختم شي نوځمکه پاکه شوه لمونځ ورباندي صحيح دي خوپر دغه ځمکه تيمم وهل صحيح نه دي،کله چې معلوم وي چې دائحمکه داسي ده اوکه معلوم نه وي نووهم مه کوئ .

مسئله: که وچاته دورښودلوپه نيت تيمم ووهي اوپه زړه کي دځپل تيمم وهلو نيت نه ؤبلکه يوازي په هغه زده کول مقصدؤنودهغه تيمم نه صحيح کيږي يعني دتيمم ورښودونکي ،ځکه چې په تيمم صحيح کيدوکي دتيمم اراده کول ضروري ده،نوکله چې دتيمم وهلواراده نه وي بلکه بل ته ورښودل اوورښکاره کول مقصدوي نوتيمم نه صحيح کيږي . (بهشتي زيورص۶۹ج۱دمنيه ص۲۹په حواله،شرح البدايه ص ۵۴ج)

مسئله: په تيمم کي پرلاسونوڅه خاوري اودوړي لګيدلي وي نويولاس دي پربل لاس ووهي هغه ڈي وڅنډي،ځکه چې په تيمم کي

دخاورو اودوړومبنلو شرط نه دي بلکه (پرخاوره اونورولاس تیرول فرض دي (خولړډیره دوړه هم که چیري ولګیږي نوپروانه لري.
(طهورالمسلمین ص۲۳)

مسئله: په مرتدکیدوتیمم نه ماتیږي مثلاً یوه مسلمان دمجبوریت په خاطرتیمم وواهوبیاتردي وروسته ده اسلام پریښودي خدای ناکرده یعني مرتدشواوبیاالله جل جلاله توفیق ورکړچې مسلمان شونوکه په دي منځ کي اودس نه شومات نوپه هغه مخته تیمم چې داسلام په حالت کي ئي وهلی ؤلمونځ کولای شي. (کشف الاسرارص۲۸ج۲)

مسئله: وجنب ته له یخ څخه دناروغئ ویره ده اوتودي اوبه نشته یاله دي څخه هم دضرر رسیدوغالب ګمان دی نوتیمم جائزدی.
(احسن الفتاوی ص۵۶ج۲ دردالمحتارج۱ص۲۱۶ ج۱په حواله)

مسئله: په ځنګل کي وحیوانانوته خطروي که دئ اودس کولوته لاړشي نو حیوانان به دچاکښت ته ورشي .یادورکیدوویره وي نوپه دي صورت کي تیمم وهل جائزدي. (فتاوی دارالعلوم ج۱ ص۲۶۵)

مسئله: څوک چې داسي ځای بندي وي چیري چې اوبه نه وي. اودلمانځه وخت تیریدونکی وي نوهغه وخت دي په تیمم لمونځ وکړي اووروسته دي راوګرزوي. (امدادالفتاوی ص۷۴ج۱)

مسئله: یوڅوک په مسجدکي ویده ؤ،که دده احتلام وشونوله مسجد څخه دوتلودپاره دتیمم ضرورت نشته،خوکه دکوم عارض په وجه هغه وخت وتل مشکل وي نوتیمم ضروري دي (یعني که په شپه کي داحتلام په حالت کي له مسجده وتل مشکل دي نوتیمم دي ووهي.
(فتاوی محمودیه ص۵۱۲ج۱)



مسئله: دلمانځه تروخت مخته تیمم وهل جائزدی اوله یوه څخه تر زیات فرضودپاره هم صحیح دی اودفرضولمونځودپاره هم تیمم جائز دی لکه چې دنفل لمانځه دپاره ،ځکه چې زمونږپه نزدتیمم داودس اوغسل مطلقاًبدل دی،ځکه نوپه یوه تیمم چې څومره فرضونه نفلونه وغواړي کولای شي،لکه څنګه چې په یوه اودس ئي کولای شي.
(کشف الاسرارص۱۵ج۲)

مسئله: په تیمم کي درکن اوشرط په پاتیدوتیمم نه صحیح کیږي اودمسنون اعمالوبیله اړتیاپه قصداً پریښودلوډیرسپک اوکله زیات کراهت راځي خوتیمم بیله شبهي صحیح اوکافي کیږي،نوکه چا دلاسونوچپه خواپرخاوره ووهله پرتهول مخ اولاسونوئي مسح وکړه بیاهم تیمم صحیح شو،خودسنت په خلاف اومکروه شو.

مسئله: که ګوتی خلاصي نه پریښولي شي خودبل لاس په ګوتوئي ددوئ په مینځ کي خلال اومسح وکړه بیاهم صحیح شو.

مسئله: که لاسونه ونه څنډي بنه پرمخ اولاسونوخاوره ومښي بیاهم تیمم صحیح شوخودافعل مکروه دی.

مسئله: که دلاسونوپرځای کوم دستمال اونورپرځمکه وواهي هغه ئي پرمخ اولاسونوتیرکړي نوتیمم صحیح شوخوبیله عذره داسي کول ډیرمکروه دی.

مسئله: که کوم بل چاخپل لاسونه پرځمکه ووهل دکوم بل چاتیمم ئي ورووواهو نوصحیح دی په دي شرط چې دهغه ترلاسووهلومخته ده تیمم قصداونیت کړی وي.

مسئله: که پرمخ تیمم ووهي پرېږدي اودومره وخت وروسته پرلاسو مسح وکړه چې فرضاً که مخ په اوبوپریمنځلای وای نوتراوسه به وچ شوی وای، بیاهم تیمم صحیح دی.

مسئله: که مخته پرلاسو مسح وکړه بیائي پرمخ وکړه نوهم تیمم صحیح شو، خودسنت په خلاف اوپه څه اندازه مکروه شو. (طهورالمسلمین ص۲۴)

مسئله: کومي اوبه چې په میدانو (پرلارودسړکونوپرغاړو) دوقف په توګه ایښول شوي وي نوترڅوچې هغه اوبه په زیاته اندازه نه وي تیمم منع کونکي نه دي، دکم والي په صورت به دااوبه دڅښلوبلل کیږي اوکه په زیاته اندازه وي نود اوداسه دپاره هم بلل کیږي.
(کشف الاسرارص۲۵ج۲)

(اوپه اوس وخت کي خوپرعامولارو داستعمال دپاره نلونه اوپائپونه وي ددي داستعمال عامه اجازه وي. محمدرفعت قاسمی)

مسئله: دجمعي دلمانځه دتیریدوپه ویره تیمم نشي کولای، ځکه که جمعه تیره شي نودماپښین لمونځ دي اداکړي.
(هدایة ص۲۹ج۱، شرح نقایه ص۲۵ج۱کتاب الفقه ص۲۴۹ج۱)

مسئله: دچاچې دواړه لاسونه پرووړپري شوي وي نوکله چې دی په چاتیمم وهي نوپرپري شوي ځای دي مسح په وکړي. (کبیری ص۶۴)

مسئله: هغه سړی کوم چې تیمم خووهي خوتراوسه ئي لمونځ نه وُکړی چې اوبه ئي وموندلي نودده تیمم باطلیږي. (مظاهرحق ص۴۷۷ج۱)

مسئله: ترڅوچې تیمم ماتونکی کوم شی ورپیښ نه شي ترهغوپه یوه تیمم ټول وختي اوقضائي فرضونه، نفلونه دنوروو ختونولمنځونه ټول کولای شي. (نمازمسنون ص۱۴۵)



مسئله: په تیمم کي هم تنګه ګوته اوبنګړی ښورول کفایت کوي، ځکه چې ددي په ښورولوتردي لاندي ځای تیمم کیږي، اوفرض صرف مسح کول دی، ددوړو هلته وررسول ضروري نه دی.

مسئله: په اودس کي چې دکوموویښتانوپریمنځل واجب دی په تیمم کي دهغوئ مسحه کول واجب دی اوهغه ویښتان چې په اوڈس کي پریمنځل واجب دی هغوئ هغه دي کوم چې په مخ کي وي ځکه داوږدي راځړیدلي ږیري مسحه کول واجب نه دی. (کتاب الفقه ج۱ص۲۵۷)

مسئله: په تیمم کي مسحه که په لاس سره وشي نودهغه دپاره شرط دادی چې په ټول لاس یادلاس په زیاتره برخي وشي ځکه چې مسحه کول په تیمم کي فرض دی که په لاس وي یادلاس قائم مقام په کوم بل شي وي. (کتاب الفقه ج۱ص۲۵۶)

مسئله: تیمم وهونکی واودس کونکیوته لمونځ ورکولای شي
(نمازمسنون صفحه۱۵۰)

مسئله: احناف وائي چې فاقدالطهورین یعني دچاسره چې پاکونکي دواړه شیان اوبه اوپاکه خاوره اونورنه وي هغه ته پکاردی چې دلمانځه ظاهري صورت عملي کړي په داسي ډول چې قبلي ته مخامخ شي سرپه سجده کړی، نه دی قرأت وائي، نه دي تسبیح لولي، نه دی التحیات اونوروائي اونه دي دلمانځه نیت کوي، که دجنابت په حالت کي وي اوکه صرف اودس نه وي.

یادونه دي وي چې دلمانځه په دغه ظاهري صورت ئي له فرضوغاړي نه خلاصیږي بلکه ددي ادائینه دانسان پرذمه باقي وي اوفرض پرده پاته وي تردي چې داودس دپاره اوبه یاتیمم دپاره خاوره پیداکړي. که

په حالت دجنابت کي وي بيا هم دلمانځه داظاهري صورت جائزدی .

(کتاب الفقه ج۱ ص۲۶۵)

**دمتيازوحکم اوله هغه څخه دځان نه ساتلووعيد**

مسئله: دتي رودونکي ماشوم بولی هم مرداري دي اوفقهاء کرامو داپه مغلظ نجاست کي شميرلی دی . ځکه نوکه ماشوم پرجامو متيازي وکړي دهغه پريمنځل ضروري دی،که پربدن لگيدلي وي نو دبدن پاکول هم ضروري دی که بيله جامواوبدن پاکولولمونځ وکړل شي نولمونځ نه صحيح کيږي راگرزول ئي ضروري دی .

مسئله: دکوچني هلک اوانجلئ بولي چې خوراک ئي پيل کړی وي يائي نه وي پيل کړی نجاست غليظه دی .

(فتاوی رحيميه ص۱۳۰ ج۷ ،فتاوی عالمگيري ص۲۸ ج۱ باب فی النجاسات)

مسئله: دتي رودونکي ماشوم بولي هم ناپاکي دي ځکه دجامي پرکوم چې ولگي پاکول ضروري دی اودپاکيدودپاره دومره کفايت کوي چې دبولوپرځای دومره اوبه وبهول شي چې په دومره اوبه هغه جامه درې ځله لنديدلای شي . (آپ کی مسائل ج۳ ص۸۵)

مسئله: له متيازوڅخه دځان ساتلوډيراهتمام کول پکاردی په احاديثو کي ددي ډيرتاکيدراغلی دی اوفرمايل شوي دي چې دقبر عام عذاب له متيازوځان نه بچ کولوپه وجه وي،په يوه حديث شريف کي دي چې نبي اکرم ﷺوفرمايل ،له بولوځان ساتي په قبرکي تر ټولومخته له بنده څخه دمتيازوپه اړه حساب کيږي .

له حضرت معاذبن جبل رضی الله تعالی عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺله بولوځان ساتی اوخپلوصحابوته هم ددي



امرکاوو .حضرت ميمونه بنت سعد رضی الله تعالی عنهماعرض وکړچې ای دالله جل جلاله رسوله مونږته داوښيه چې دقبرعذاب په کوم شي کيږي؟ رسول الله ﷺوفرمايل دمتيازوله اثره (يعني دڅاڅکوله اثره) (مجمع الزوائد ص۸۵ ج۱)

رسول ﷺددووقبرونوسره تيرشونوده مبارک ﷺوفرمائل ددغو دواړوقبرونوخلکوته دقبرعذاب ورکول کيږي . اودوئ ته دکوم غټ شي په اړه عذاب نه ورکول کيږي په دوئ کي يوه له بولوځان نه ساتی اودوهم چغل خوري کوله .

(دادواړه شيان داسي نه ووچې ورڅخه ځان ساتل گران دي په آساني سره ځان ساتلای شو) (ترمذی ص۱۱ ج۱ باب التشديدفی البول ومشکوة شريف ص۴۲ ج۱)

**دبولوله څاڅکوځان نه ساتلوباندي دقبرعذاب**

دمتيازواوچغلگري په وجه دقبرعذاب ورکول کيږي،په دي کي څه مناسبت دی؟

ددي په اړه په التعليق الصبيح شرح مشکوة المصابيح ص۱۹۳ ج۱،کي ليکلی دی چې عالم برزخ دعالم آخرت مقدمه ده .

(دآخرت لومړی منزل دی)اودقيامت په ورځ په حقوق الله کي ترټولو مخته دلمانځه اوپه حقوق العباد کي دويني (ناحقه دچادويني بهولو) حساب او پريکړه کيږي اودلمانځه کيلي له ناپاکي څخه (نجاست که حقيقي وي اوکه حکمي)پاکي حاصلول دی (بيله پاکي لمونځ نه صحيح کيږي نوپاکي دلمانځه مقدمه ده ) اودناحقه ويني بهولوعام سبب غيبت اودخلکوپه منځ کي چغلگړي کول دي (نوغيبت او چغلگري دناحقه ويني بهولومقدمه ده )

په همدې مناسبت قبریعنې عالم برزخ کې له دغودواړوشیانوڅخه په
ځان نه ساتلودقبرعذاب ورکول کیږي.

نبی اکرم ﷺ ارشادفرمائي چې په دوزخ کې به څلوروډوله خلک وي
نوردوزخیان به له دوئ څخه په تکلیف وي اویوبل ته به وائي چې
موږپه خپله په تکلیف یو، خودوئ په خپلو نعروچغوزموږپه تکلیف
کې نورزیاتوب کړی دی، له دوئ څخه به یوشخص دسکروټوپه تابوت
کې بندوي، اویوسړي به خپلې کلمې راکشوي روان به وي، اود یوه
سړي له خولې به وینه اونوونه بهیږي اویوسړی به پخپله خپلې غوښې
خوري.

کوم شخص چې به دسکروټوپه تابوت کی بندی وی دهغه دعذاب
وجه داده :چې پرده دخلکومالونه وو(اوپه همدې حالت کې دی وفات
شو)اوکوم سړی چې به پخپله خپلې ګلمې راکشوی دهغه وجه به
داوی، چې پرده به متیازې لګیدلی ده به دهغوپروانه کوله اونه ئې
منځلې.

اودچاله خولې څخه چې به وینه اونوونه بهیږي دهغه وجه داده چې
هغه دخلکوغوښه (په غیبت کولو) خوړله .(مجمع الزوائدص۸۴ج۱)

دغه ټول احادیث دی په نظرکې ونیول شی اودپاکۍ پوره اهتمام دی
وشی ،دمتیازولګیدل معمولوی اوسپک ګڼل اودهغوي دپریمنځلو
اهتمام نه کول ډیره سخته ګناه ده ،استنجاء دی هم همدارنګه ووهله
شي چې داوبوڅاڅکي ونه غورزي اوڅاڅوکی پرجامواوبدن باندی
ونه لګیږي ،دڅاڅکودبندولوچې کومې طریقې دی اوپه تجربه
ګټوری معلومې شی هغه دی غوره کړي ،ترڅوزړه ئی بنه داډمن شي



،لنډه داچې په دې اړه ډیراهتمام اوفکروکړی ،دادی هیڅکله سپک
نه ګڼي (فتاوی رحیمیه ص۱۲۹اترص۱۳۴پوری ج۷)

(دتفصیل لپاره وګورئ دنجاست غلیظه اوخفیفه حکم اوتعریف.

(فتاوی دارالعلوم ص۳۳۳ج۱،دردالمحتارص۲۹۳ج۱په حواله ،کتاب الفقه ص۱۴۹ج۱،آپ کی
مسائل ص۸۲،ج۳،هدایه ص۵۸ج۱،اوداحقرکتاب دلمانځه مسئلې)

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما بیان کوی چې یوه ورځ رسول الله ﷺ له
دووقبرونوسره تیریدی نو(ناڅاپه ودریدی ) اوئې فرمایل: ددغو
دواړوقبرووالوته دقبرعذاب ورکول کیږي ،اودقبرعذاب پرکومه
غټه خبره نه ورکول کیږي (چې په دی دنیاکی ورڅخه ځان ساتل ګران
وی ) اصلاً له دغودواړوڅخه یوشخص خوهغه دی چې له متیازوڅخه
ئی خپل ځان نه ساتی له بولوئی ځان نه ژغوری ،یعنی داسی احتیاط
به نه کاووچې دمتیازوڅاڅوکی دی پرده ونه لګیږي
،دروایتونولنډیزدادی :چې دبولوپه اړه ډیراحتیاط ته اړتیاشته
،دمتیازوکولوپروخت دی څاڅوکی پربدن اوجاموونه لګیږي
،دککړیدودی هیڅ صورت رامنځ ته نشي ،اواستنجاء دی په داسی
ډول ووهله شي چې صفائي اوپاکي په پوره توګه راشي ځکه علماء
لیکی چې له متیازوځان نه ساتل اونه پاکول کبیره ګناه ده ،دچاچې
مزاج قوی وی اودهغه یقین وی چې څاڅوکی نه راغورزي ،بې شکه
دداسی سړی لپاره یوائې په اوبو استنجاء کول کافی دی ،خودکوم
چاچی ترډیره وخته څاڅکې راځي نو داسی سړی که لوټه ونه کاروی
یوائې په اوبواستنجاء ووهی نویقیناً دده پرتوګ جامه اونورڅه به
مردار شي اودی به دمتیازوپه اړه په احتیاط نه کولوګناهګارشی.
(مظاهر حق جدید ص۲۴۴ج۱)

## استنجاء څه ده ؟

داودس ماتونکیو شیانو په اړه مخکې ښودل شوی دی چې دغټوبولو ، کوچنیوبولو ،ومذی او ودی په وتواودس ماتیږي په دې کې دټولو امامانو اتفاق دی.

ترمرداری وتلووروسته دغټواو کوچنیوبولو ځایونه ککړپریښودل او صرف اودس کول دپاکی دحصول لپاره کفایت نه کوی ،بلکه دالازم دی چې له کوم ځای څخه مرداری راوتلی ده هغه ځای وچ اوپاک کړل شی ،ځکه دامناسب دی چې ددې ځای اړوندمسئلې داودس ماتونکی مسئلوسره سمدستې بیان کړل شی چې داهم دهغې برخه ده.

## داستنجاء ارکان څلوردی

مستنجئ (استنجاءوهونکی سړی) مستنجی منه(هغه مرداری) چې ورڅخه دکوچنیویاغټوبلوځای ککړوی – مستنجی فیه هغه ځای دی دکوم چې پاکول دی یعنی دکوچنیواوغټوبولوځای دی اومستنجی به یعنی اوبه اولوټې داڅلورشیان دی له دوی پرته استنجاء نشی کیدای.

ښکاره ده چې ددې ترڅون له دووشیانوسره دی استنجاء اوداړتیاترسره کول ،په استنجاء کې دوې خبرې دیادونی وړدی: لومړی داستنجاء تعریف ،دوهم دهغې په اړه مسئلې داړتیاترسره کول یعنی دمتیازو او غولوتړون ددریوشیانوسره دی ،یوخوددوي حکم دی دوهم هغه ځایونه چیري چې اړتیاترسره کول منع وی ،درییم هغه خبرې چې دهغوی په موجودیت کی دحاجت رفع کول منع دی ،اوس ددې ټولوشیانوبیان په ترتیب سره کیږي.



## داستنجاء تعریف

له استنجاء څخه مرادهغه مرداری ده کومه چې دمخ یادشاله لاری یعنی کوچنیواوغټوبولوله ځایه راوتلی وی له دغوځایونولري کول دی له کومه چې راوتلی ده ،داپه اوبویالوټه اونوروهم لیري کیدای شي ،اوددې نوم استنجاء ځکه دی چې داستنجاء لفظ دعربې ژبې له یوې جملې څخه راایستل شوی دی ،ونه چې په بیخ کې پریکړله شي نووائي«نجوت الشجرة »یعنی ونه له بیخه پرې کړیده ،داستنجاء مفهوم هم دغه چې پلیتی له بیخه پري کړله شي.

داستنجاء یعنی طهارت اصل طریقه خوداده:چې اوبه وکارول شی ،ځکه له اوسنی امت څخه په مخکینیوامتونو کي شرعاً یوائې په اوبو دپاکۍ حکم ؤخوداسلام مذهب دمهربانی ،اودعوامودهوساینی په خاطر په لوټه اونوروشیانوچې پکی کوم ضررنه وی دپاکي حاصلولواجازه وکړه –(نورتفصیل داستنجاء په بیان کې پرمخ راځي)
(کتاب الفقه ص۱۴۶ج۱)

دخلاء معنی :خالی کیدل ،تشیدل ده اواصطلاحاً ددي (الخلاء) لفظ مطلب کیږي هغه ځای چیري چي کوچنیویاغټوبولواړتیاترسره کیږی چې موږورته بیت الخلاء ،فلش،تشناب اونوروایو.

**اداب**:

آداب اصلاً دادب جمع ده معنی ئي دعقلمندی ،هوښیاری ،قاعدې ، طریقې او اندازی ده اوپه اصطلاح کې ددې مطلب دی کوم شئ داسی په طریقه کول چې غوره اوښه وي اوهغه شئ که دویناوی اوکه دکولو

، اووهرهغه کارته هم وائي کوم چې په احتیاط اوږده فکر،په ښه طریقه اوغوره اندازوکړل شي. (مظاهر حق ص۳۴۵ج۱)

مسئله:له ګیډي څخه چې له دواړولاروکوم څه وزي هغه ته «نجو» وائي داستنجاء معنی داشوه دمرداري ځای پاکول ،که کوم شئ پرتیرکړی اوکه ئي پریمنځی ذواړه دوله کیدای شي (په اوبو،لوټه وغیره )استنجاء دنجاست دنجاست له لاري (یعني دغټو اوکوچنیو بولوله ځایه )لیري کول دی . (کشف الاسرار ص۹۳ج۳)

**بیت الخلاوی دشیطانانومرکزونه دی**

رسول الله ﷺ فرمایلي دی : ګورئ ودغوبیت الخلاوته پیریان اوشیطانان ځي راځي له تاسوڅخه چې څوک کله بیت الخلاء ته ورشي نوهغه ته پکار دی چې دادعاولولي «اَللّٰهُمَّ اِنِّی اَعُوذُبِکَ مِنَ الْخُبثِ وَالْخَبَائِث»

پیریان اوشیطانان ځي راځي یعنی پیریان اوشیطانان بیت الخلاء (ټټي،تشناب) خپلې اډې جوړوی ،چیری چې دوی ځي راځي اوددې خبرې په انتظاروی چې کله به څوک راشي اودوی هغه په تکلیف کړی اوپه فسادکي ئي واچوی ځکه چې بیت الخلاءیوداسی ځای دی چیری چې نه صرف داچې له مرداري پرته نورڅه نه وی ،بلکه انسان خپل سترخلاص کړی کښینې اوداالله ذکر نشي کولای ځکه له پیریانو او شیطانانوخوندی کیدولپاره بیت الخلاء ته دورننولوپروخت دغه دعا لوستل پکاردی.



**بیت الخلاء ته ورننوتلواوراوتلوپروخت دعا**

حضرت عائشه رضي الله عنها بیان کوی: چې رسول الله ﷺ به کله له بیت الخلاء څخه راووتی نوفرمایل به ئي : اَللّٰهُمَّ غُفرَانَکَ - یعنی ای الله ! زه ستاڅخه بخښنه غواړم. (ترمذی)

تشریح : دغه مهال دبخښنی اومعافی غوښتلودوې وجې علماؤلیکلی دی:یوه خوداچې درسول الله ﷺ پرمبارکه ژبه به هروخت داالله یادونه وه ،داړتیاترسره کولوپه څیرحالت څخه پرته په کوم بل حالت کي ده مبارک ﷺ داالله ذکرنه دراوی ،نوپه بیت الخلاء کي داالله دذکرقضاء کیدوته هم رسول الله ﷺدومره اهمیت ورکاوی چې له هغه ځایه په راوتلوسره به ئي سمدستی له الله جل جلاله څخه مغفرت اومعافی غوښته .

اودوهمه وجه داده :چې دانسان له دغې مردارۍ خلاصیدل داالله تعالی ډیرلوی انعام دی ،انسان چې هرڅه وخوری اوخپلې ګیډې ته ئي شیوه کړی ،هغه هضم شي اوبیاداوینی اونورپه صورت کي دهغه جوهر دجسمانی قوت اوتوان باعث شي اوفضله په آسانی سره بهرته ووزي ،که څوک فکر اوغوروکړي نوداالله دومره سترنعمت دی چې ددې شکرنشی اداکیدلای. نورسول الله ﷺ به له بیت الخلاء څخه دوتلوسره سمدستی مغفرت اومعافی غوښته چې پروردګار ه !تاسوچې په کوم کرم اونعمت ونازولم دهغه شکرنشی اداکیدای ،هغه راته معاف کړي. (مظاهرحق ص۳۶۲ج۱)

مسئله: دغټواوکوچنیوبولوکولوپرمهال دباندی په صحراء کي له جامو پورته کولومخکې اوپه بیت الخلاء کي تردننه کیدومخکې دادعا ولولئ : اللهم انی اعوذبک من الخبث والخبائث.

(بخاری ص۹۳۶ج۱کشف الاسرار ص۹۹ج۳،مظاهر حق ص۳۴۸ج۱)

اوبیاکینه پښه په بیت الخلاء کې کښېږدئ اوبهرته دراوتلوپروخت لومړی ښئ پښه بهرته راوباسئ ،اوبهرته دراوتلوپرمهال دادعاووا یاست .

(۱) اللهم غفرانک (۲) الحمدلله الذی اذهب عنی الاذی وعافانی

(نمازمسنون ص۹۳،ترمذی ص ۲۷ج۱،ابن ماجه ص ۲۶ج۱،مظاهرحق ص۳۶۲ج۱ ،البحرالرائق ص۲۴۳ج۱)

مسئله:غټوبولوته دتلولپاره چې کومه دعاده دوړوبولولپاره ځان ته کومه دعانشته بلکه دکوچنیواوغټوبولودواړولپاره یوه دعاده.

(امدادالفتاوی ص۱۴۳ج۱)

مسئله: بیت الخلاء ته دتلوپرمهال (اعوذبالله مَن الخبث والخبائث ) ویل ځکه مستحب دی چې په دې ځای کې شیطانان راغونډیږي ،ځکه دوئ ته مرداري خوندورکوي ،اودراوتلوپروخت غفرانک وایاست ځکه چې په بیت الخلاء کي دالله یادونه پرینښودل کیږي ،اودشیطانانو سره دیوځای کیدووخت دی ،ځکه له دې څخه مغفرت غوښتل مناسب دی (المصالح العقلیةص ۳۷)

**داستنجاء حکم عام دی**

مسئله: داحنافوپه نزدپاکی حاصلول یاپه اوبوپاکی حاصلولوپرځای په لوټه پاکول مؤکد سنت دی ،دنرولپاره هم اودمیرمنولپاره هم ،(ځکه نوکه کوم مکلف انسان ئی ونکړي نودراجح قول سره سم داسی کول مکروه دی ) په دی شرط چې مرداري دوتلوله ځایه مخته نه وی لګیدلی ،داحنافوپه نزدله مخرج څخه مرادهغه ځای دی له کومه چې مرداری راوزي اوهغه ځای چې په دی کی شامل وی لکه دغټوبولودځای هغه شاوخواکومه چې دولاړیدوپرمهال سره بسته شي اوله هغه څخه هیڅ په نظرنه راځي ،داغه رنګه دنرودځانګړي



غړي (ذکر ) هغه حلقه (کړۍ ) کومه چې دسوری پرشاوخواوی اوله کوم ځایه چې متیازي خارجیږي .

(کتاب الفقه ص۱۴۷ج۱،فتاوی محمودیه ص۵۴ج۲)

مسئله: له بدن څخه راوتونکی مرداره ماده هغه که دمعمول سره سم راوتونکي شئ وی (لکه متیازي اونور) یادمعمول په خلاف مثلاً وینه نوونه اونوردغه نجاست دوتوله ځایه پرمخ خورشي اودهغه مقدارتریوه درهم زیات وی نودهغه پاکول فرض دی اوددې لپاره اوبه کارول ضروری دی ،ځکه چې اوس داکاردنجاست لیري کول دی ،استنجاء نه ده ،اودنجاست لیري کولولپاره داوبواستعمال فرض دی اوهمدغه حکم په هغه صورت کي دی کله چې متیازي دخاص اندام ترسوری تجاوز وکړي دیوه درهم ترمقدارڅخه پرزیاته برخه خوري شي نوپه اوبوددې پریمنځل فرض دی ،اوپه لوټه اونوروپاکول په دې صورت کي کفایت نه کوی .

داغه رنګه ناسته به هم دقلفې څرمن دبولوله ککړیدوڅخه پاکوي خو که ددرهم ترمقدارزیات ځای ککړشي نودهغه منځل فرض دی ،لوټه اونور پرمښول کفایت نه کوی ،ښکاره خبره ده چې په داسی صورت کي هغه ټول نجاست کوم چې پرمخرج وی په اوبوپریمنځل لازمیږي ،ځکه چې ترمخرج تجاوزکونکی نجاست دمنځلوپرمهال ټول خوریږي ،اود احتیاط تقاضاهم همدغه ده چې ټول ځای په اوبوپریمنځل شي ،اوپه داسی سیمه کي چیري چې اوبه ډیري وی هلته خوپه رشتیادزیات احتیاط طریقه همدغه ده چې په اوبو منځلوپاکی حاصله کړل شي ،ځکه چې په دی سره مرداری هم لیري

کیږي اوبدبوی هم ختمیږي خوپه هغوسیموکې چیري چي اوبه لږوي ،دهغه ځای لپاره دصاحبینو (امام ابویوسف رحمة الله علیه او امام محمد رحمة الله علیه) رأیه په ښکاره توګه زیاته په کار راتلونکي ده.او همدغه حکم په هغه صورت کي دی کله چي دانسان لپاره داوبوکارول ستونزمن وی.

لنډه داچي که نجاست خاص دمخرج پرسروی نودهغه زائلول مؤکدسنت دی.دانجاست له معمول سره سم وتونکی وی لکه کوچنی اوغټی بولی یادمعمول په خلاف لکه مذی اوودی اووینه اونوردغه په اوبولیری کړل شي یاپه کومه بله طریقه ،دی ته استنجاء او استجمار وائي ،خوکه مرداری له مخرجه تیري وکړي نودهغه لیري کول فرضیږي ،اودي ته استنجاء نه وائي بلکه دنجاست زائلول ورته وائي.
(کتاب الفقه ص۱۴۸ج۱)

**له استنجاء څخه دعاجزحکم**

پوښتنه :یوناروغ دی چي یوه پښه ئي ماته شوی ده ،داودس کولو پرمهال اوبه په کوم بل چاراتویوي ،خوداودس غړی پخپلولاسونو پریمنځلای شی ،خوداستنجاء کولوپرمهال ډیرتکلیف ګالی ،سم بل څوک یي له خپل ځایه راپورته کوي بیاپه تکلیف سره مریض پخپله استنجاء وهی یاترچارپایي لاندی څوک لوښی ورته کښیږدی دی استنجاء وهی نوآیاوداسی ناروغ ته استنجاء معافیږي کنه ؟
ځواب: په دی صورت کي استنجاء معاف نه ده ،خوکه دواړه لاسونه شل وی یایولاس شل وی مګر څوک اوبه وراچوونکی هم نه وی اوروانی اوبه هم نه وی چي پکی کښینی په روغ لاس استنجاء ووهی



،اودمیرمني خاوندیادنارینه کوروالا هم نه وی ،چي استنجاء ورووهی نو استنجاء معاف ده. (احسن الفتاوی ص۱۰۹ج۲)
مسئله: که په کیڼ لاس کي عذروی ،لکه زخم اونوریاکارنه کوی (فلج وی) نوپه مجبوری کي ښي لاس استعمالولای شی ،خوپه ډیر احتیاط سره اوکه په کیڼ لاس معذوروی اوروانی اوبه هم دی نشي موندلای اونه داسی څوک وي چي ده ته اوبه ورواچوي نود دغی مجبوری په وجه دی استنجاء وهل پریږدی اوکه دده سره روانی اوبه یاټاکي لګیدلی وی یاداسی کوم سړی وی چی اوبه ورواچوي چي ورڅخه شرعاً پرده نه وی نوپه دغوصورتونوکي دی په ښي لاس استنجاء ووهی.
مسئله: که دچادواړه لاسونه فلج وی نوله ده څخه استنجاء وهل یومخ معافیږي کله چي څوک وروهوونکی نه وی ،خوکه دی پرځمکه یادیوال په مښلوکولای شی نوپاک دی کړی. (کشف الاسرار ص۹۷ج۱)
مسئله: په ښي لاس بیله کوم عذراستنجاء وهل مکروه دی.
(هدایه ص۴۸ج۱،شرح نقایه ج۱ص۴۸)
مسئله: که عذروی په ښي لاس دی استنجاء ووهی.
(فتاوی دارالعلوم ص۳۷۹ج۱)

**تراودس کولووروسته استنجاء وهل**

مسئله: تراستنجاء وهلومخکی که اودس وکړل شی ،وروسته په یاد ورتلوپرمهال استنجاء ووهی (یعنی مخکی په لوټه استنجاء ووهله اودس ئي وکړاوتراودس کولووروسته ورپه یادیدوپروخت یي بیاپه

اوبو استنجاء ووهله نوكه له مخرجه نجاست تجاوزنه وګړي )
نومخکې اودس صحيح دی ،دوهم ځل اودس کولوته اړتيانشته.
(احسن الفتاوی ج۲ص۱۰۸)

مسئله: که نجاست له مخرج څخه تجاوزنه وی کړی نواستنجاء په
اوبوسنت ده اوکه تيري کړی وی نوکه ددرهم تراندازه نه وی زيات
شوی ،نوپريمنځل واجب دی اوکه زيات شوی وی نوپريمنځل فرض
دی اوکه په لمانځه کې ورپيادشونوپه اخيرنی صورت کې لمونځ
باطليږي . اوپه دوهم صورت کې مکروه تحريمی ګرزي اوپه لومړی
صورت کې تنزيهی مکروه دی. (امدادالفتاوی ص۱۳۹ج۱)

(نوپه اخيرنی صورت کې دی لمونځ مات کړی اوپه دوهم کې دي پوره
کړي لمونځ دی راوګرزوي اوپه اولنی کې راګرزول هم ضروري نه دی.
(رفعت)

**چيري چې غټې اووړی بولی کول صحيح نه دی**

مسئله: په مسجدیادمسجدپربام غول اومتيازي کول حرام دی
،داسی ځای غټې اوکوچنی بولی کول چيری چې وقبلی ته مخ
یاشاوی مکروه دی که ځنګل وی اوکه ابادی.

مسئله: کوچنی ماشومان دکوچنی اوغټوبولولپاره داسی ځای
کښينول چيري چې قبلی ته مخ یاشاوی ناجائزدی اوددي ګناه پر
کښينونکی ده .

مسئله:دلمراوسپوږمی پرلوردغټویاکوچنيوبولوپروخت مخ یاشا
کول مکروه دی .



مسئله: په ولاړواوبوکي غول اومتيازي کول حرام دی په زياتوولاړو
اوبوکي تحريمی مکروه دی اوپه روانوکي تنزيهی مکروه دی .

مسئله: په لوښي کي غټې یاکوچنی بولی کول په اوبوکي اچول
یاداسی ځای غټې اوکوچنی بولی کول چی له هغه ځايه وبهيږي
اوبوته ورشی مکروه دی (له مرداری نالی پرته)

مسئله: دویالی ،تالاب اونوروپرغاړه غټې اوکوچنی بولی کول
مکروه دی کله چې نجاست په کي ولويږي ،اوداغه رنګه ترداسی ونه
لاندی چې په سيوری کي خلګ کښينی اوداغه رنګه دګلونواوميوې
ترونه لاندی ،دغه رنګه په ژمی کې چې پرکوم ځای خلګ کښينی
ولمرته اود حيوانانوپه منځ کی ،ومسجداوعيدګاه ته دومره نژدی
چي له بد بويي څخه لمونځ کوونکي په تکليف شی ،په هديره کي
یاپرداسی ځای چيري چې خلګ اودس یاغسل کوي ،په لاره کي
،وهواته مخامخ ،په سوري کي ،ولاري ته نژدی اووکاروان یاکومي
غونډي ته نژدي تحريمی مکروه دی.

لنډه داچي داسی ځای چيری چې خلګ ناسته پاسته کوي اودوي ته
تکليف وی اوداسی ځای چې ورڅخه راوبهيږي وخپل طرفته راشي
مکروه دی. (علم الفقه ص۴۵ج۱،شرح نقايه ص۴۹ج۱،هدايه ص۴۸ج۱،درمختار ص۵۶ج۱)

**دغټواوکوچنيوبولوپرمهال چي له کوموشيانوڅخه ځان ساتل پکاردی**

مسئله: دمتيازواوغولوکولوپرمهال خبري کول ،بيله اړتياټوخل
،دکوم ايت یاحديث یاکوم بل متبرک شي لوستل یاداسی شئ چي
وربانذی دالله ﷻ یانبی ،یاملکي یادکوم عزتمندنوم وی یاکوم ايت
یاحديث یادعاء ليکل شوي وي دځان سره ساتل ،بيله اړتيا په پروته

یاولاړه غتې اوکوچنی بولی کول تولی جامی ایستل لوڅ بربنډ غتې اوکوچنی بولی کول ،په ښي لاس استنجاء وهل.

(علم الفقه ص۴۵ج۱،بهشتی زیور ص۱۱ج۱۱،دمنیه ص۱۷اوکبیري ص۵۸په حواله)

**په کوموشیانوچي استنجاء صحیح نه ده**

مسئله: هډ،دخوراک شیان ،گوبرخوشایي ،اوپه هر مردارشئ اوهغه لوټه یاډبره چي یوځل استنجاء په وهل شوی وی ،پخه خښته ،ټوکر ښیښه اوسپینه ،سره زر،سپین زر،گیلټ ،کوله ،چونه ،اوپه داسی شیانو استنجاء وهل چي مرداری نه شی پاکولای لکه سرکه اونور...کوم شیان چي څاروی اونورخوری لکه پروړ،واښه اونوراو داسی شیان چي بیعه لري ،که لږ بیه ولري اوکه ډیره لکه کپړه اونور،(کومی کپړي او کاغذونه چي داستنجاء وچولولپاره جوړشو دی په هغوباندې جائزده.)

مسئله: دانسان اجزاء لکه ویښتان ،هډونه ،غوښه اونوردحیوان هغه جزء چي ورسره متصل وی ،دمسجد چټائي اونور،دونوپه پاڼو،کاغذ که څه هم ورباندی لیکلی وي اوکه ساده وی ،دزمزم اوبه ،داوس پاتی شوی اوبه ،دبل په مال بیله اجازې اوخوښي ،هغه که اوبه وی که رخت یاکوم بل شئ ،پنبه ،اوداسی ټول شیان چي ورڅخه انسان یادهغه حیوانان گټه اخلی ،په دغوټولوشیانواستنجاء وهل مکروه دی.

(علم الفقه ص۴۶ج۱،شرح وقایه ص۱۲۷ج۱،درمختارص۵۷ج۱،شرح نقایه ص۲۷ج۱،هدایه ص۴۸ج۱)

**په کوموشیانوچي بېله کراهته استنجاء صحیح ده**

اوبه ،دخاورولوټه ،هرهغه شئ چي پاک وی اونجاست لیري کړي په دی شرط چي مال اومحترم نه وی. (علم الفقه ص۴۶ج۱)



مسئله: له ساده کاغذیاورباندی څه لیکل شوی کاغذڅخه دلوټې کاراخیستل مکروه دی. (احسن الفتاوی ص۱۰۸ج۲)

مسئله: نن سباچي کوم کاغذدلوټي په توگه کاریږي چی ورته ټلینک پیپر ویل کیږي[toale tissue]هغه دلیک ورنه وی په هغه کي دجذبولوصلاحیت وی ،په هغه استنجاء کول اوروڅخه دلوټي کار اخیستل بیله کراهته جائزاوصحیح دی.

(احسن الفتاوی ص۱۰۸ج۲،شامی ص۳۴۰ج۱،فتاوی دارالعلوم ص۳۸۰ج۱)

مسئله:که دغه کاغذدخاورودلوټوپه څیرجذب کوونکی وی نودديٍ هم هغه حکم دی کوم چي دخاورودلوټودی ،که له مخرج (سوری ) څخه شاوخوامتیازي نه دی خوري شوی ،یاخوري شوی دی خودرهم په مقدارکي دننه خوري شوی دی نودديٍ تراستعمال وروسته یوائي په اودس کولوهم لمونځ کولای شی کنه په اوبوبه هم پاکی حاصلول ضروري وی.(نظام الفتاوی ص۲۳ج۱،امدادالفتاوی ص۱۳۹ج۱)

مسئله: غوره دادی چي لومړی په لوټه نجاست لیري کړل شی اوترهغه وروسته اوبه وکارول شی ،خونن سباپه ښارونوکی دګټر طریقي (فلش اونور) په وجه دلوټي استعمال ډیرتکلیفجن وی ،په لوټو غورځولو داوبولاره بندیږي چي دبدبويي اوایذاء باعث گرزي ،بیاددي په پاکولو کی هم ډیري ستونزي رامخته کیږي ځکه په داسی ځای کي دلوټو استعمال هیڅکله نه دی پکار،دلوټي اوډبری استعمال مستحب دی اوخپل ځان اونورخلک په مصیبت کي اچول حرام دی ،دکوم مستحب کارپه خاطر حرام کار کول جائزنه دی

،خودپاکي په غرض چي کوم جذب کونکی کاغذونه په بازارکي ترلاسه کیږي دهغوئ استعمال جائزدی .
(احسن الفتاوی ص۱۰۵ج۲،فتاوی رحیمیه ص۲۷۸ج۴)

**دبولودارتیاپه ترسره کولوکي بندیزونه**

دارتیادپوره کولویعنی دغټواوکوچنیوبولواونوروکولوپه اړه شارع ﷺ څوطریقی مقرري کړی دی چي له ټولګی څخه هغه احکام دی دکوموتراوچي په ځانکړتیاسره دنجاست زائلولوسره دی (دناپاکی لیري کولوسره دی ) که نجاست په ابوسره لیری کړل شی هغه ته استنجاء وائي که له اوبوپرته په کوم بل شئ مثلاً په لوټه اونورولیري شي نوهغه ته استجماروائي .

دارتیاترسره کولوپرطریقو(آدابو) ځینی خلک دانیوکه کوي چي دحاجت ترسره کول له فطري اعمالوڅخه دی چي دهغه پرځای کول انسان دخپلوځانګړوحالاتواوماحول سره سم کوي ،پدې شرعي بندیزونه لګول بیله ددي چي ارتیاپیبنه شي ،انسان په مشکلاتوکي اچول دی اوپرتکلیف ګاللومجبورول دی.

دانیوکه هم دهغوخلګواونورونیوکوته ورته ده کوم چي له شرعی ذمه واریانوآزادی غواړي کني دحیض اوکوروالی اونوروپه اړه چي کوم بندیزونه شارع ﷺ لګولی دی اودهغوبندیزونوچي یادونه پرمخ راځي ،اخیرتوپیرڅه دی ؟

دغوره والی خبره خوداده چي په اسلامی شریعت کي چي په دې اړه کوم څه راغلی دی هغه ټول اموداسی دی چي عقل یي تسلموي اوکوم چي دصحت دخوندی کولوله تقاضوسره سم دی ،اودپاکي



کومه طریقه چي لازمه شوي ده دمعاشرتی نظام له ارتیاووڅخه دی حقیقت دادی : چي اسلامی شریعت چي دکوموشیانوامرکړی دی که څه هم دهغه حکم دعلت اومصلحت په ړوندپوښتنه نشي کیدای ،ځکه چي داټول شرعی تکلیفونه کوم چي دانسان لپاره ځانګړی دی هغه ټول دالله ﷻ په بندګي (عبادت ) کي داخل دی ،اوانسان ته داحق نشته چي ترڅوددي پرځای کولوڅخه عاجزنشی نه دی څخه مخ اړونه وکړي ،له دې سره داټول شیان دعقل سره سم دی .اودانسان لپاره چي کوم عبادتونه په شریعت کي مقررشوی دی ،هغوي دروغتیااومعاشرتی تقاضوموافق دی.

اخیرڅوک شته چي داوائي چي له مرداري پاکیدل ضرورنه دی اوهغه څوک شته چي داویلای شی چي ددي لپاره کومې طریقی شریعت ښودلی دی هغه دانسان لپاره ګټوري نه دی.

په حقیقت کي داسلامی شریعت احکام ټول دمعاشری دښیګړي اود انسان دخواخوږي لپاره داټول بندیزونه ګټوردی اوچاته پردې دنیوکي کولوتوان نشته ،اوس دارتیاترسره کولوپه اړه احکام واجب ،حرام ،مستحب ،اومکروه په ترتیب سره بیانیږي.(کتاب الفقه ص۱۵۲ج۱)

**داستنجاء واجب شیان**

(۱) لومړی هغه شیان چي داستنجاء لپاره واجب دی مثلاً استبراء یعنی دغټواوکوچنیوبولووروسته چي کوم څه پاتی شي دهغه خارجول ،تردي چي داغالب ګمان شي چي اوس هلته هیڅ نشوپاته ،دځینوګړوپه عادت کي داخل دی چي په تګ راتګ ،ولاړیدو ،یاپه داسی حرکت کولوچي دوي یي عادیان وی دمتیازودریدلی څاڅکی

راوزي ،پر داسی خلگو دعادت سره سم پخپله استبراء واجب ده ،ځکه نوکه دبولو دقطروپه بندیدوکي شک وی نواودس کول نه رواکیږي ،که بیله ډاډمن کیدوپه همدې حالت کي اودس وکړاودبولو قطره راغله نواودس به بې کاره شي - لنډه داچي واجب دی چي ددریدلی نجاست که شبه وی نوټول دی وتلوته پریږدي ،تردي چي ورته داغالب ګمان شي چي اوس هیڅ نه دی پاتی ددي خبري پروجوب دټولو اتفاق دی ،په دي کي دچا اختلاف نشته .

(۲) دوهمه دپاملرنی وړخبره هغه ځای دی چیری چي داړتیاترسره کول حرام دی پرقبرسربیره (یاورته نږدی ) دحاجت پوره کول حرام دی ،ددې سبب ښکاره دی هدیره دنصیحت اوعبرت حاصلولوځای دی ،ځکه دابه ډیره بداخلاقی وی چی هلته انسان خپل فرض ښکاره کړی اوهغه په راوتونکی مرداري ککړ کړي ،ځکه چي درسول الله ﷺ په صحیح حدیث کي راغلی دی چي نبی ﷺ دقبرونوزیارتونوته هڅونه کړی ده ترڅواخیرت په یادشي ،نوداخوناپوهی اوبې عقلی ده چي څوک داسی ځای چیري چي خلګ عبرت حاصلولواوداخرت ورپه یادولولپاره راځي دغټوبواو وړوبولوځای وګرزوي داسی کول دنصیحت حاصلولو اود الهی ویري دهغه مقصدضددی کوم چي دقبرو نودزیارت په اړوند دی ،زیاته پردی په داسی حرکت دهدیروسپکاوی دی (ددي په اړه تفصیلی مسئلي انشاءالله په مسائل میت کي راځي)

(۳)دریيم داچي په هغوځایونوکي چي داړتیاترسره کول جائزنه دی ولاړی اوبه دی ،چي پکي داړتیاترسره کول ممنوع دی (یعنی غټی



اوکوچنی بولی کول منع دی )اوولاړی اوبه هغه دی چي بهیږي نه ،حضرت جابر رضي الله عنه له رسول الله ﷺ څخه ددي حدیث روایت کړی دی چي رسول الله ﷺ په ولاړواوبوکي له متیازوکولو څخه منع کړي ده (دمسلم ،ابن ماجه اونوروپه روایت) دکوچنیوبولوپه ممانعت کي غټی بولی کول هم شاملی دی ځکه چي داترهغه هم زیاته ناوړتیاده ،ځکه ددي منع په زیاته سختی سره دی .

یادونه دی وی چي دفقهی دغه حکم له هغوغوروحکمونوڅخه دی کوم چي دعلم له مخه منل شوی ادسلیم عقل په نزدخوښ کړل شوی دی ،ځکه چي هغه اوبه کومې چي دګټي رسولولپاره وی دهغومردارول په بدوخصلتونوکي ترټولوناوړه خوی دی برسیره پردی په داسي کولوتیری کونکی ناروغي اونورهم پیداکیږي .

لنډه داچي داسلام دمذهب له ښیګړوڅخه دی چي دهغه څومره عبا دتونه دی هغوی دانسانانودخواخوږی له تقاضوسره سم دی .

(۴) څلورم داچي داړتیاترسره کول په داسی ځای کي حرام دی له کومه ځایه چي اوبه رابهیږي اوچیري چي دخلګوتګ راتګ وي اوچیري چي دارام لپاره سایه اوسیوری وی ،حضرت معاذبن جبل رضي الله عنه روایت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمایل : دلعنت له دریو شیانوځان ساتئ : داوبوپرګودرغټي بولی کول ،یادلاري پرسر داړتیاترسره کول ،یادهغه سیوري پرځای کوم چي دارام لپاره وی .

(۵) پنځم قبلې ته مخ یاشاکولوپرمهال اړتیاپوره کول حرام دی که په کورکي وی که په ډګرکي اوکه په ځنګل کي که په غلطي سره څوک دبولولپاره قبلې ته مخامخ کښیناستی اوبیاورپه یادشونواوس که

مخ گرزول ممکن وو نوسمدستی دی وگرزي ،کنه نوپکاردی چې
ترڅو ممکن وی دارتیاترسره کولوپرمهال دی قبلې ته مخ نکړي
،اوداستنجاء وهلواودلوټوکارولوپه اړوندهم هغه حکم دی کوم چې
دکوچنیو او غټوبولوډی یعنی دغه دواړه کاره هم (قبلې ته مخامخ
کیدوپه حالت کي )تحریمی مکروه دی .
(نن سبادکورنوپه ودانولوکي دهوساینی دشیانوخیال ساتل کیږي
آیادغه حدیث شریف عملی کول کوم گران کاردی؟ رفعت قاسمی غفرله
(۶) شپږم داچي دحاجت ترسره کولوپرمهال هواته مخامخ کښينستل
مکروه دی ځکه نودمتیازوکولولپاره دهواپرلورکښينستل نه دی پکار،
داسی نه چي دبولوڅاڅکی دهواپه څپوکي راوغورزي اوپلیت
موکړي ،ښکاره خبره ده چي په دې حکم کی پخپله دارتیاترسره
کوونکی گټه ده ،داشئ دانسان په فطرت کي داخل دی چي دی دخپل
بدن اوجامو پلیتیدو څخه ځان گوري ،شارع ﷺ دهمدې مصلحت په
نظرکي نیولو اوددې لپاره چي خلگوته دپاکی حاصلولوهڅونه وي
،دغه کاريي مکروه بللی .
(اونن سباپه ولاړه متیازي کول فیشن دی چي پکي خدای خبرپرجامو
اوبدن څومره څاڅکی منبلی کله چي په حدیث شریف کي څرگند
راغلی دی چي یوه سړی ته یواځي دمتیازوله څاڅکوځان نه ساتلوپه
وجه دقبرعذاب ورکول شوي ؤ ،رسول الله ﷺ ددې خبرورکړی
ؤ،ځکه له دغوشیانوځان ساتل پکاردی . محمدرفعت قاسمی غفرله
(۷) اووم داچي دحاجت پوره کولوپروخت خبری کول مکروه دی
،ځکه چي داسی کول پخپله دخبروسپکاوی دی ،اودسړی هیڅ فکرنه



وی ،ډیرممکن دی چي دخبروپه دوران دالله تعالی نوم یادالله درسول
نوم یادې ته ورته کوم پاک لفظ پرژبه راشي ،پردې برسیره بیله
اړتیاخبري کول داغسی هم مکروه دی ،پرته له دې چي داوبولوښی
وغواړی یادستمال ،رخت ،داستنجاء دلوټي اونوروغوښتنی لپاره
وی کوم چي دنجاست دځای پاکولویاوچولولپاره کارول کیږي
یادضرورت په خاطروخبروته اړشی نومکروه نه دی .
(۸) اتم (په ډگر،ځنگل ،اونوروکي ) ولمرياسپوږمی ته مخامخ
کښینستل اوحاجت پوره کول مکروه دی ،ځکه چي دادالله دقدرت
دنښواودهغه له نعمتونوڅخه دی چي ورڅخه دالله ﷻ ومخلوق ته
گټه رسیږي ،اوداسلامی شریعت له اصولوڅخه دی چي دالله ﷻ د
نعمتونو احترام اودهغوئ درناوی وشي .
(۹) نهم داچي استنجاء په کینې لاس ووهله شي ،ځکه چي ښي لاس
عموماً دډوډی اونورخوراک لپاره دی .
داهم مستحب دی چي داستنجاء پروخت دکینې لاس گوتی ترنجاست
لگیدومخکی لندې کړل شی ،ترڅوزیاتی په نجاست ککړي نشی
،داغه رنگه ترفارغیدووروسته کینې لاس په کوم پاکوونکی شئ
پریمنځل هم مستحب دی .
اودستنجاء پروخت غړی سست پریښودل مستحب دی ترڅوپه آسانی
سره نجاستُ زائل کړل شی . (کتاب الفقه ص۱۵۴ تر۱۵۸ پوري اټوک)
مسئله: داحنافوپه نزدکه روژه نه وی نوداستنجاء پروخت دجسم
سست پریښودل مستحب دی ترڅودروژي پرمهال دبدن په سستوالی

روژه ماته نشي ،ځکه په اوبو دننه رسولو کي که له زياتي مبالغي څخه کار واخيستل شي نو روژه ماتيږي.
(کتاب الفقه ص۱۵۸ الومړی ټوک ،مظاهر حق ص۳۵۳ ج۱)

**په اوبو داستنجاء وهلو دوه شرطونه دي**

په اوبو داستنجاء وهلو دوه شرطونه دي يو خو داچي اوبه طهوريعني پاکوونکي وی ،دوهم شرط دادي : چي هغه اوبه دمرداری پريمنځلو لپاره کفايت کوونکي وي ،ځکه نو که اوبه لږوي چي نجاست له خپل ځايه نشي ليري کولای چي ترنجاست لګيدو مخکي چي کوم حالت ؤ،هغه ځای بياهم همغسی شی نو په داسی صورت کي دی دغه اوبه ونه کارول شي.(بلکه ددومره کمو اوبو په موجوديت کي دی په لوټه استنجاء وهله شي (ځکه چي دلوټو او نورو استعمال داوبو دموجوديت سره هم دهغه قائم مقام کيدای شي خوبياهم داوبو کارول غوره دی او ترټولو غوره خو داده : چي لوټه او اوبه دواړه وکارول شی۔په کومو صورتونو کي چي دلوټي استعمال بيله اوبو صحيح دی.
(کتاب الفقه ص۱۶۰ ج۱)

مسئله: بيله لوټو يوازي په اوبو استنجاء وهلو بشپړه پاکی حاصليږي په دی شرط چي دڅاڅکو ناروغی نه وی ،او که دا ناروغي وه نو لومړی دخاوری په لوټو استنجاء وهل پکاردی ياکوم بل تدبير کول پکاردی چي دڅاڅکو راتلو احتمال پاته نشی .(امدادالاحکام ص۴۰۰ ج۱)

**لومړی دی دمخ خواومينځله شی که دشا؟**

يوه پوښتنه داده : چي لومړی دمخ خوا پريمنځل پکاردی که دشا خوا؟ په دی اړه مسلکونه تفصيل غوښتونکی دی زموږ دامام ابوحنيفه



رحمة الله عليه په نزد لومړی دی دغټو بولو ځای ومينځل شي ،ځکه چي هغه ځای زيات مرداردی او ځکه هم چي دغټو بولو دځای اودهغه سره خواکي ځای په مبنلو دمتيازو څاڅوکي راوزي ،ځکه نو دمخ خوا په لومړی پريمنځلو هيڅ فائده نشته.

مسئله: داستنجاء وهلو پروخت دڅاڅکو خيال اووهم نه دی کول پکار، په خيال اووهم کوم شئ نه مرداريږي ،داسی توهمات رفع کوی او په زړه زړه کي اعوذبالله واياست ،هيڅکله وهم مه کوئ (فتاوی دارالعلوم ص۳۷۳ ج۱ دالاشباه په حواله ) .(که اوبه زياتی وی نو دوه ځله پريمنځل هم څه پروانه لري. «رفعت»

**په استنجاء کي دلوټي پرځای نور څه استعمالولای شي**

مسئله: داحنافو په نزد دلوټي په توګه دپاک شي استعمال سنت دی مثلاً خاوره زوړ ټوکر او نور دوچي خاوري ټوټي۔

او په مکروه شيانو استنجاء وهل تحريمی مکروه دی. مثلاً هډوکی ،ګوبر(خوشائي) ځکه چي رسول الله ﷺ په دغو شيانو له استنجاء وهلو څخه منع کړيده داغه رنګه دانسان او حيوان دخوراک څښاک په شيانو او هغه شيان کوم چي شرعاً داحترام وړ وي په هغوي سره استنجاء وهل تحريمی مکروه دی اودمال ضائع کول هم منع دی او هغه شيان کوم چي شرعاً داحترام وړ وي په هغو کي دغه شيان دی : دانسان دبدن کومه برخه که دکوم کافر وی او که دمردار،ليکل شوی کاغذ که څه هم پرهغه نيم توری ليکل شوی وی ،ځکه چي هغه داحترام وړدی (خو اکه په هره ژبه ليکل شوی وی ) او داسی کاغذ چي هيڅ نه وی وربانډی ليکل شوی خو پرهغه ليکل کيدای شی ،خو داسی

کاغذچي ورباندی نشی لیکل کیدای په هغه استنجاء کول بیله کومه کراهته جائزدی لکه: (toilet tessue) داغه رنګه دداسی شئ دلوتې په توګه کارول مکروه دی چي قیمتی وی اوپه استعمالولو هغه تلف شي یائي بیه کمه شي ،هوکه هغه شئ داسی وي چي تراستعمالولوورسته په پریمنځلویاوچیدلوبیاهغه دمخکی په ډول کیدای شي نوددي شئ په استعمال کي کراهت نشته۔

دپخوخښتو،توکرو،ښیښي ،کوئلې اوبنوائي ډبري استعمالول مکروه دی اوکه دهغه کارول تاواني وی نوتحریمی مکروه کیږي ، ځکه چي دزیانمنوشیانوکارول جائزدی ،داکراهت به تنزیهی وی۔که ددی استعمال زیانمن نه وی.

ددې شیانودمکروهوالی سبب دادي: چي ددوي په استعمال هغه ځای نه پاکیږي اوسنت دادی : چي دغه ځای پاک کړل شی۔

مسئله: دکوم بل چاله دیواله لوټه راخستل استنجاء په وهل تحریمی مکروه دی ځکه چي دبل مال ته لاس اوږدول جائزنه دی ،هوکه خپل دیوال (اونور) وی نوپه دې کې هیڅ کراهت نشته. (کتاب الفقه ص۱۶۰ج۱)

(دځینوښاغلیوعادت وی : چي په روانه روانه دیوچاله دیواله لوټه راوباسی ،اواودس وچول پیل کړي حال دادی :چي داسی کول جائزنه دی چي دچامال بیله اجازي وکارول شي ،اوځینی خلک پرلاره په روانه روانه خبری کوی اودس وچوي داغلطه طریقه ده اودبې حیایي خبره ده اوداسلام دبدنامی سبب دی.

محمدرفعت غفرله



**استبراء دنرولپاره**

مسئله: دطهارت (پاکی) مسئلې دنارینه اوښځینه دواړولپاره یو ډول دی ،خواستبراء پرمیرمن واجب نه ده اوله استبراء څخه مراددادی :چي دمتیازوڅاڅکي یاغټې بولی چي تراوسه پرمخرج لګیدلی وی هغه دی په پوره توګه وایستل شي ،تردی چي داغالب ګمان شی چي پردې ځای هیڅ نه دی پاته پرمیرمن داعمل واجب نه دی ،خوداپرواجب دی چي له غټواوکوچنیوبولوفارغیدو وروسته لږ وځنډ یږي (یعنی بیړه دی نه کوي چي څاڅوکي وڅڅیږي ) تردی وروسته دی استنجاء (په اوبو) یالوټه یادی دواړه استعمال کړي.
(کتاب الفقه ص۱۴۹ج۱،احسن الفتاوی ص۱۰۴ج۲)

استبراء نوم له بهرڅخه راوتوونکوشیانوڅخه دبرأت غوښتل ،په دغو طریقوکي چي هره طریقه وی چي ورڅخه یقین حاصل شي چي دنجاست هیڅ اثرباقی نه دی پاتی شوی ،اودنجاست دزائلیدو اطمینان دخلګو دطبیعتونودبیلوالی په وجه بیل بیل وی ،چاته ژرپاکی حاصلیږي اوچاته په ځنډ،اودچااودس په تګ کولوچیږي اودچاپه غاړی تازه کولو.(کشف الاسرار ص۱۰۱ج۳)

مسئله:په لوټه داستنجاء وهلوپه اړه دمیرمنوحکم دنروپه ډول دی یعنی دمیرمنولپاره هم همداسی مستحب دی لکه دنرولپاره.
(فتاوی دارالعلوم ص۳۷۴،دردالمحتار ص۳۱۹ج۱په حواله)

**دمتیازودناروغ داپریشن حکم**

پوښتنه :دزیدمتیازی بندی شوی ،ډاکټرترنوپورته په آپریشن دمسالی پائپ ورولګاوو ،په دغه پائپ کي متیازي راځي اودغه

پائپ همیشه پرګیده وی اوله متیازوډک وی ،دپائپ خوله په تارترلې
وی نوپه داسی حالت کي داشخص لمونځ کولای شي اوکنه؟
ځواب : په داسی حالت کي هم لمونځ معاف نه دی ،کول ئی ضروري
دی (که ) شبه ورته وی نو وروسته دی راوګرزول شی ،په ناسته که
نشی کولای نوپه پروته دی په اشاره وکړی خوپرېږدی دی نه.
(فتاوی رحیمیه ص۳۶۵ج۴)

**دمتیازوله لاری دسپینواوبووتلوحکم**

مسئله: دمتیازوله لاری چي کومې سپینی اوبه راوزي هغه مرداري
دی اونجاست غلیظه دی او اودس ماتوونکی دی ،اوپربدن یاجامه
که ولګیږي نوبدن اوجامه مرداریږي خودیوه درهم په اندازه (یعنی
دلاس دورغوی دژورتیاپه برابر) معاف دی ،که دمنځلووخت نه وی
اودائي اغوستي وي نولمونځ صحیح کیږي ،وروسته دی پریمنځل
شي ،
(فتاوی رحیمیه ص۳۶۷ج۴ ددرمختار مع الشامی ج۱ص۲۹۳په حواله وهدایه ص۵۸ج۱باب الانجاس ،مالابدمنه ص۱۹)

**په استنجاء کي یوه لوټه دوه ځله کارول**

مسئله:په کومه لوټه چي یوځل استنجاء ووهله شي هغه مرداره شوه
دوهم ځل دهغې کارول منع دی خوکه ددي بل اړخ نه وی کارول شوی
نوددې (هغه بل اړخ ) کارول صحیح دی داغه رنګه که ئي وسولوی.
اومرداره برخه ئي وسولوي بیاهم دهغې کارول صحیح دی.
(فتاوی محمودیه ص۴۸ج۲دشامی ص۲۲۷ج۱په حواله)

مسئله: داستنجاء کارول شوی لوټه په وچیدونه پاکیږي ،ځمکه په
وچیدوپاکیږي،لوټي تراستعمال وروسته نه پاکیږي ،ځکه دوهم ځل
په دې استنجاء مکروه ده. (احسن الفتاوی ص۹۳ج۲دردالمحتارج۱ص۲۸۷په حواله)



مسئله:په کومه لوټه چي یوځل استنجاء وهل شوي وي په هغه دوهم
ځل استنجاء وهل مکروه دی خوکه اړتیاوي دسفراونورپه وجه
نو بیا وچیدو وروسته که هغه وسولول شي دوهم ځل درېیم ځل یازیات
استنجاء پړووهله شي نوپروانلري.
(فتاوی دارالعلوم ص۳۷۶ج۱دردالمحتارص۳۱۴ج۱باب الاستنجاءپه حواله)

**یواځي په لوټه استنجاء وهل**

پوښتنه:که دغټویاکوچنیوبولو وروسته په لوټه ځان پاک کړي په او
بوئي ونه مینځی ،بې له پریمنځلوئي اودس وکړلمونځ ئي اداکړی
نولمونځ صحیح شواوکنه ؟اوداغه رنګه ځینی وګړي صرف لاسونه
منځي دودی ته کښینی ،حال دادی چي اوبه هم موجودی وی ،شرعاً
څه حکم دی ؟

ځواب :که متیازو له مخرجه تجاوزوکړ اودزیات مقدارتریوه درهم
(قطر=۱ء۱۱- انچ ۷۵ء ۲ سینټي میتراوټول پیمائش =۹۵ء انچ=
۹۴ء۵سینټي میټر) زیات نه شونوبیله پریمنځلویواځي په لوټه
کارولولمونځ صحیح کیږي اودغټوبولوحکم دادي :چي په لوټه
تراستنجاء وهلو وروسته که له مخرجه تجاوزکوونکی نجاست وزن
یوه مثقال (۵ماشي= ۸۶ء۴ګرامه) یاتردې کم وي نولمونځ صحیح
کیږي که څه هم په خوړیدوکي تریوه درهم زیات وی - یواځي په لاس
منځلودودی خوړل جائزدی ،خوکه له مخرجه تجاوزکوونکی نجاست
ددرهم ترمقدارزیات وی نوبیله عذره هغه نه پریمنځل تحریمی مکروه
دی اوکه ددرهم په مقداریاترهغه لږوی نوتنزیهي مکروه دی.
(احسن الفتاوی ص۱۰۸ج۲دردالمحتارص۳۱۴ج۱،ص۳۹۳ج۱په حواله)

مسئله:داستنجاء په اړه غوره طريقه داده : چې لومړی په لوټه استنجاء ووهی بیاپه اوبو،اوکه یوائې په لوټه استنجاء ووهی یایوائې په اوبو استنجاء ووهی نوداهم کفایت کوي اوسنت استنجاء اداکیږي.

(فتاوی دارالعلوم ص۳۷۹ج۱دردالمحتارص۳۱۲ج۱په حواله)

مسئله:شریعت دعامې ابتلاء په مواقعولږ نجاست معاف کړی دی ،لکه په بیت الخلاء (ټټی) کي دمچانواونورپرمرداری کښینستو وروسته پربدن اوجامو کښینستل اودلاري څاڅکي اونورو.

(احسن الفتاوی ص۱۰۵ج۲)

مسئله:دمچ ماشي اونوروغول منع کوونکي نه دی .(کشف الاسرارص۲۲ج۱)

## په ولاړه متیازي کول

پوښتنه :ځینی دنوي رڼاخلګ وائي چې په ولاړه بولي کول پکاردی ځکه چې نبی ﷺ داسی کړي دي؟

ځواب : داخبره یومخ غلطه ده چې رسول الله ﷺ داسي کول ،دده مبارک ﷺ همیشه په ناستی بولې کول عادت وو اوداغه رنګه موږته پکاردی ځکه چې په ولاړه بولی کولوڅخه ده مبارک منع کړیده ،اوپه ولاړه دمرداري اندیښنه ده ،حال دادی :چې له دی څخه دبچ کیدو ځانګړی تاکید اوتمهید په حدیث شریف کي راغلی دی ،اوفرمایلي دي :چې دقبرعذاب زیاتره دبولوڅخه پروانه کولواوله هغه څخه دځان نه ساتلوپه وجه وي ،له دي پرته په ولاړه متیازي کول دنبی ﷺ دطریقی اوعادت په خلاف دی له دی څخه ځان ژغورل پکار دی.



رسو ل الله ﷺ یوځل دعذر له کبله په ولاړه بولي کړي دي ،ده مبارک په تشریف یوړ یوځوړ ځای وو چې وربان‌دی خلګودکورونوامبارونه اونور اچول هلته په کښینستودښویدواندیښنه هم وه داغه رنګه هغه ځای ناپاک اولوند هم وو ،دجامودککړیدو ویره هم وه اودده مبارک په ملاکي درد ؤچي دهغه لپاره په ولاړه بولي کول په عربوکي ژرتأثير کوونکی درملنه بلل کیده ،په دغووجودی مبارک دریدلی وو کنه عادت اوطریقه ئي دانه وه اوس هم که دچاپه رشتیاعذروي نوپه ولاړه بولی کول ورته رواکیږي بیاهم دمیتازوله څاڅوکو احتیاط ضروري دی . بي بي عائشه رضي الله عنها فرمائي :چې څوک په تاسوکي داووائي چې رسول الله ﷺ په ولاړه متیازي کولي دهغه تصدیق مه کوئ (یعنی هیڅکله باورمه په کوئ )رسول الله ﷺ همیشه په ناسته بولي کولي.

(الجواب المتین ص۸ واحسن الفتاوی ص۵۱۵ج۱،فتاوی دارالعلوم ص ۳۷۷ج۱ ،مشکوة شریف ص ۴۳ج ۱ ،بخاري ص ۳۶ج۱ ،عمدة القاري ص۱۳۸ج۳)

مسئله:بې له عذره په ولاړه متیازي کول مکروه اوبداخلاقي ده .

(شرح النقایه ص۵۷ج۱،ردالمحتارص۵۷ج۱ ،مظاهرحق ص۳۲۵)

مسئله: په غسل خانه کي بولي کول ،په ښي لاس بیله مجبوریته استنجاء وهل ،دغټواوکوچنیوبولوکولوپرمهال خوراک څښاک مکروه دی.

مسئله:بیله اړتیاپه پروته یاولاړه متیازي ،غول کول ،یادکولوپرمهال ټولې ج مې ایستل ډیره ناوړه خبره ده . (امدادالسائلین ص۱۶)

## تراستنجاء کولو وروسته دلوندوالی راوتل اودهغه درملنه

پوښتنه :دزیدتربولو وروسته ترنیم ساعت پوري څاڅکی راځي ،دلوټي اواوبوکارولووروسته بیاولوټې ته اړ وي ؟

ځواب: په داسی صورت کي په لوټه اواوبواستنجاء وهلو وروسته دخاص اندام (ذکر) په سوری کي پنبه اونورکښیږدی ،ترڅودلوندوالی راوتلوشبه پاتی نشي ،نوترپینبه ایښودلو وروسته دی اودس وکړي لمونځ دی اداکړي. (فتاوی دارالعلوم ص۳۷۸ج۱دردالمحتارج۱ص۱۳۹ باب نواقض الوضوء په حواله)

مسئله: دکوم چاچي داناروغی وی چي دبولوکولو وروسته څاڅوکي راځي پرده په اوبواستنجاء وهلومخکي دلوټي یاټشوپیپر استعمال لازم دی ،کله چي داډمن شي بیادی په اوبواستنجاء ووهي.
(آپ کی مسائل ص۸۴ج۳) یادی پورتنی طریقه خپله کړي.

مسئله: داستنجاء پرلوټه لګیدلی لاس که پرپرتاګه (یانورو) ولګیږي نوپرتوګ نه مرداریږي .(فتاوی دارالعلوم ص۳۷۶ج۱دعالمګیري ص۴۸ج۱باب الاستنجاء په حواله)

مسئله: په استنجاء کي دلوټي ترکارولو وروسته که دنجاست اثرباقي پاتی شواودمرداري دځای خوله پرجامه ولګیده نوجامه نه مرداریږي (که څه هم دهغه مقدارتریوه درهم زیات وي ،ددې په خلاف که داستنجاء لوټه په لړواوبوکي ولویږي نوهغه اوبه مرداریږي . (فتاوی دارالعلوم ص۴۹ج۱)

مسئله: دخاوروپه لوټه اودس وچولو وروسته که پرلاس بالکل نجاست نه وی لګیدلی نوکه لاس په اوبوکي ولویږي نوهغه اوبه نه مرداریږي .(فتاوی دارالعلوم ج۱ص۳۵۶)

مسئله: دبولوداسی نري څاڅکي چي معلومیږي نه ،معاف دی ،په دغوجامی اوبدن نه مرداریږي په داسی جاموکي لمونځ صحیح دی.(خوله دې څخه هم احتیاط کول پکاردی.

مسئله: که پرپرتاګه متیازي راووزي اوپرتوګ لوندشی بیاددې پرتاګه لوندوالی پربدن ولګیږي نوکه ددرهم ترمقدارپرزیات ځای



لګیدلی وی نودبدن پریمنځل ضروري دی ،که بیله بدن پریمنځلو په نوروجاموکي لمونځ وکړي نوددې لمانځه راګرزول ضروري دي.
(فتاوی دارالعلوم ص۳۰۷ج۱ ،دردالمحتار ص۲۸۴ج۱باب الانجاس په حواله ،هدایه ص۷۱ج۱)

مسئله: کله چي دناپاکي مقدارتردرهم زیات شي نوترجامومینځلو او پاکولووروسته لمونځ کوئ.(فتاوی دارالعلوم ص۳۱۱ج۱دهدایې ص۷۱ج۱باب الانجاس په حواله)

**په پاکي کي دوسوسې ختمولوطریقه**

پوښتنه :که څوک په یقینی توګه کوم مردارشئ مینځي خویوشک لاختم شوی نه وی چي بل پیل شي ،په دې وجه هروخت ذهن پریشانه وی ،دقرآن اوحدیث په رڼاکي واضح کړئ؟

ځواب :ددې شک علاج دادي : چي جامه یاشئ درې ځله مینځی او(جامه اونوردي هم هرځل ونښتیځل شي) نوپاک شو.

تردي وروسته که شک راپیداشي نودهغه هیڅ پروامه کوئ بلکه شیطان په داسی ویلووترټئ چي ای مردوده ! کله چي الله ﷻ اودهغه رسول ﷺ دې ته پاک وائي نوزه ستادشک اچولوپروا ولي وساتم؟ که تاسوزماداتدبیرعملی کړ نوانشاء الله تاسوبه دشک له ناروغي خلاصون پیداکړئ.(آپ کی مسائل ص۹۰ج۲)

مسئله: دچااودس نه وُ هغه اودس وکړ،یابولوکولووروسته جنب غسل وکړاوتراودس یاغسل وروسته ده پرخپله شرمګاه لوندوالی ولید خوده ته معلومه نه ده چي دااوبه دی که متیازي ؟ نودده لپاره دوهم ځل اوس کول پکاردی اوکه په لمانځه کي داصورت ورپیښ شوخوپخپله دده دنجاست یقین نه دی نوده ته پکاردی چي لمونځ پسې پوره کړي ،دې لوندوالي ته دی فکر قطعاً نه کوي ،هو! که

دبولويقين وي نوبيله خبره ده اوداسې شخص ته دوسوسي علاج
وربنودل شوی دی چي دی دی تراستنجاء وروسته اوبه پرشرمگاه
(خاص اندام) وشيندي ترڅوکه لونوالی په نظرورشي نودي داډمن
وی چي داهم هغه اوبه دی کومې چي ده پخپله ورشيندلی وي .(کشف
الاسرارص۱۵ج۱،مظاهرحق ص۳۶۴ج۱)

وحضرت تهانوی رحمه الله ته حضرت خواجه رحمه الله عرض وکړ چي ماته په
استنجاء کي ډيري وسوسی راځي په ډيروخت کي مي په مشکل
اودس وچيږي داستنجاء دځای (ذکر) په مبنلوڅه ناڅه يياهم راوزي ؟
حضرت تهانوی رحمه الله ورته وويل :داسی هيڅکله مه کوه په معمولي
توګه له وچولووروسته پريمنځل پکاردی په عوارف المعارف کي
ليکلی دی :چي ددي حال دتيوپه څيردی چي ترڅوئي مبني څه ناڅه
ځينی راوزي (يعنی لکه شيدي چي ترڅولوشل کيږي نوشيدي
دحيوان په تيوکي راځي اوکه لوشل ودروي نوشيدي هم دريږي ) که
همدغسی ئي پريږدي نوهيڅ نه راوزي ،حضرت خواجه صاحب عرض
وکړ:چي وروسته څاڅوکي راوزي ،ورته وئي فرمايل :هيڅ فکر مه
کوه که څه هم وروسته لمونځونه راوګرزوي ،خوترڅوچي په
زوردوسوسی په خلاف ونکړی دانارروغی نه ليري کيږي ،په دی وجه
خوتاسوپه دغه تکليف کي ياست .

خواجه صاحب وويل: دلوندوالی په وجه ديوه وخت په اوداسه کي
ددوهم وخت په اوداسه کي شک رالويږي ،ددې په وجه دپرتاګه
دستمال هم پريمنځل غواړي .



مولاناتهانوي رحمه الله ورته وفرمايل :ما اودس کوه او مه دسمال مينځه
،څووروځي په زورداسی کولووسوسی ختميږي .
(احسن الفتاوی ص۱۰۷ج۲،دملفوظات کمالات اشرفيه ص۱۹۸ص۸۰۷په حواله )

له دې څخه ثابت شول چي په استبراء کي له زياتی غلوی اوسختی
څخه کاراخيستل له شرعی ناوړتياپرته دصحت لپاره هم زيانمن دی ،
اوذهنی انتشاراودماغی پريشانيو باعث هم دی .
(احسن الفتاوی ص۱۰۷ج۲،فتاوی عزيزي ص۱۴۰ج۲)

## داړتياترسره کولوپرمهال که لمربه وريځ کي وي

پوښتنه :لمرکه په وريځ کي پټ وي اومعلوميږي نه نودهغه پرلوربې
له بيت الخلاء په ځنګل اونوروکي) په مخ کولومتيازي وکړوکنه ؟
ځواب : له ردالمحتارص۳۵۴لومړی ټوک باب الاستنجاء څخه معلو
ميږي چي هغې خواته دمخ کولوپرمهال متيازي کول صحيح دی .
(امدادالفتاوی ص۱۳۹ج۱)

(دغتوياکوچنيوبولوپروخت ولمرياسپوږمی ته مخ ياشاګرزول
تنزيهی مکروه دی خوورځينی مراد دلمراوسپوږمی وذات (ټکی)
ته مخ ياشاکول دی دهغوی وجهت يادهغوی وړاته مخ ياشاکول
مکروه نه دی ،دغه رنګه که هغوی نه معلوميږي نوهم کراهت نشته
اوپه پوښتنه کي خوسپوږمی په وريځ کي پټه ده ځکه کراهت نشته
(حاشيه ازاستاذی حضرت مولانامفتی سعيداحمدصاحب پالن پوري
مدظله العالی (محمدرفعت قاسمی غفرله)

## په کوټه کي دننه په لوښي کي متيازي کول

په روايت کي دی چي رسول الله ﷺ په کورکي دلرګي يوه پياله درلوده
چي دده مبارک ترچارپائي لاندی به پرته وه په دې کې به دشپې رسول

الله ﷺ بولي کولي «بولي به ئي کولي» يعنى ديخ په موسم کي ياپه کومه بله وجه خوپه شپه کي وتل دپريشانۍ باعث ؤ، ځکه دشپي ده مبارک دلرګي په پياله کي بولي کولي کومه چي دهمدې کارلپاره دده ترپلنګ لاندې به پرته وه ،نودده مبارک دغه عمل اصلاً وامت ته ددې ښودلو لپاره وچي که داسې وکړل شي نودا ړتياپرمهال به ديخ په موسم يادکومي بلې پريشانۍ په صورت کي اسانى اوراحت وموندل شي .

په حقيقت کي رسول الله ﷺ پرخپل امت بې پايه شفيق اومهربان ؤ،ځکه په دينى احکامواومسئلوکي چي څومره اسانى اوراحت کيداى شواى هغه ده مبارک هرومروفرمايل. (مظاهر حق ص۳۶۵ج۱)

## په استنجاء کي طاق لوټي پکاردي

پوښتنه:دغټوبولوپه اړه په حديث شريف کي چي دطاقولو ټوکارولو په اړه کوم راغلي دى هغه طاق شمير(درې) دمتيازولپاره همدى که دمتيازولپاره جلالوټي پکاردى ،يعنى دغټواوکوچنيو بولو دواړو لپاره درې لوټې پکاردى که څلور؟

ځواب :هغه طاق (درې) لوټي دغټوبولولپاره دى ،دمتيازولپاره جلاڅلورمه لوټه پکارده .(فتاوى دارالعلوم ص۳۸۰ج۱،مظاهرحق ص۲۵۲ج۱اوص۳۵۸ج۱)

داستنجاء لپاره درې لوټي ځکه مقرري کړى دى چي دپاکى لپاره يوحدتاکل ضرورى ؤ کنه انسان به ټوله ورځ په استنجاء وهلوتيروله ،سره له دومره سخت تاکيده موږ ځينى وهميان وينوچي دوي ديوې استنجاء لپاره دلوټوکوړي جوړوي اواوبه هم په ډيرمقدار مصرفوى، اوله دريوڅخه په کمولوټوښه صفائي اوپاکي نه حاصليږي اوپه دريو پاکي حاصليږي اوتردريوزياتوکي دوخت ضائع کول اووهم زياتول



دى ،اوپه ګوبرواوهډوکواستنجاء وهل ځکه منع کړي دي چي په دي کي زياتره زيانمن حيوان مار،لړم اونورځينى چيچونکى چنجان ناست وى. (المصالح العقليه ص۳۸)

مسئله:دغټوبولوترکولووروسته دګرمى په موسم کي دنرولپاره لومړى لوټه له مخ څخه دشاپرلورورړل پکارده ،دوهمه له شاڅخه دمخ طرفته اودرېيمه لوټه بياله مخ څخه دشاطرفته .

اوکه ميرمن داودس وچولولپاره لوټه وکاروي نوهميشه يعنى په هرموسم کي دى لومړى لوټه له مخ څخه شاته وړي ،دوهمه لوټه له شاڅخه مخته اودرېيمه هم له مخ څخه شاته .بيا(که په اوبوپريمنځل غواړي) په اوبودي استنجاء ووهى ،تردې چي دنجاست اثر زائل شي . (امدادمسائل الصلوة ص۱۵)

مسئله:که کوم ناروغ دومره ناتوان شي چي پخپل لاس پخپله استنجاء نشي وهلاى نوښځه استنجاء وروهلاى شي ،له کوروالاپرته که بل څوک ورکوي نوهغه ته لاس وروړل (بيله کپړواونورو) اوورته کتل صحيح نه دى. (فتاوى محموديه ص۴۶ج۲)

مسئله:دمتيازودڅاڅوکودراوتلوله يقين سره که په استنجاء کي لوټه نه وروا خلى نوپه داسى صورت کى دلمانځه کولواجازه نشته په لوټه اونورودى استنجاء ووهي ترڅوادمن کيدووروسته دى اودس وکړي لمونځ دى اداکړى. (فتاوى رحيميه ص۳۵۶ج۴)

مسئله:دعذرپه حالت په ښي لاس استنجاء وهل بيله کراهته جائزدى .
(فتاوى رحيميه ص۲۵۸ج۴،دفتاوى خيريه ص۵په حواله)

## دغټواوکوچنیوبولودتقاضې پروخت د لمانځه دنه کولووجه

(۱) په نفس کې داوداسه اثرهغه وخت پیداکیدای شی کله چې نفس له
نوروکارونوخلاص وی اوخلاصون هم هغه وخت کیدای شی کله چې
په ګیډه کی دهوااونوروتردد اواضطراب هم نه وی ،ځکه رسول الله
ﷺ فرمایلی دی : چاته چې دغټویاکوچنیوبولوسخته اړتیاوی هغه
دی لمانځه ته نه حاضریږي په دې کی رسول الله ﷺخبرداری ورکړی
دی چې نفس پرکوم بل لورمشغولیدوکي هم دبې اودسیامعنی
موندله کیږي ځکه چې په داسی حالت کی دلمانځه وطرفته دانسان
توجه نشی کیدای بلکه هغه دمتیازواوغولوپه دفع کولوبخت وی
(۲) په کوموکوچنیو اوغټوبولوکي چې دزړه تنګی اونه حضوریقینی
وی اوکله چې حضورنه وی اوتنګي یقینی وی نولمونځ به نیمګړی
شي ځکه دداسی سبب لیري کولوحکم وشوکوم چې په لمانځه کې
دفکرونو شیندلواودتوجه دنیستوالی باعث وی.
داغه رنګه تړدیره متیازی په مثانه کې تینګول هم زیانمنی دی له دې
ځخه خطري ناروغی پیداکیږي. (المصالح العقلیةص۳۹)

## داستنجاء په اړه مسئلې

په لوټوداودس وچولوپرمهال چاته سلام اچول یاوسلام ته ځواب ویل
صحیح دی . (فتاوی دارالعلوم ص۳۷۵ج۱،درد المحتارج۱ص۳۱۹په حواله)
(ځکه چې دادبولووخت نه بلکه دی له هغه فارغ شوی دی ،صرف
دزړه اطمینان لپاره لوټه کاروي ،ګواکي افضل همدغه دي چې دغه
وخت سلام وانه چول شی اونه ځواب ورکول شي ،ځکه چې په یوه وجه
داوخت دغټواوکوچنیوبولوپه حالت کي داخل دی )



(محمدرفعت قاسمی غفرله ولوالدیه ولوالدینا امین)

مسئله: جائزخودی مګرداسی ځای اودس وچول چې تیریدوونکی
خلک په مخ ورځي دانسانیت په خلاف دی (امدادالفتاوی ص۱۴۱ج۱)

مسئله:دقطب ستوري (پیرونی) وطرفته په غټواوکوچنیوبولوکي
مخ کول صحیح دی ،ځکه چې داحکم دکعبې شریفی لپاره دی چې
دهغه پرلوردارتیاپروخت مخ اوشامه کوئ.
(فتاوی دارالعلوم ص۳۷۷ج۱،دمشکوة ص۲۹۶ج۱په حواله)

مسئله:دقبلې له لورپرته دشمال اوجنوب پرلورپه غټواوکوچنیو
بولوکی مخ کول منع نه دی. (فتاوی دارالعلوم ص۳۸۰ج۱،دردالمحتارص۳۱۶ج۱باب الاستنجاءپه حواله)

مسئله: په غټویاکوچنیوبولوکي وقبلې ته مخ یاشاکول منع دی ،خود
استنجاء وهلوپه اړه کوم دلیل نشته ځکه جائزدی.
(امدادالفتاوی ص۱۳۷ج۱)

مسئله: دمړی استنجاء دی په اوبواولوټه دواړو ورووهله شی ،داوبو
اولوټي جمع کول سنت اوافضل دی.
(مفهوم فتاوی دارالعلوم ص۳۸۱ج۱،دردالمحتارص۳۱۳ج۱فصل فی الاستنجاءپه حواله)

مسئله:په اوبواستنجاء وهل سنت دی ،ځکه چې رسول الله ﷺ به
داسی کول خوپه لوټه اونورواستنجاء وهل صحیح دي.
(نمازمسنون ص۸۸،ترمذی ص۲۹،هدایه ص۴۸)

مسئله: په لوټه داستنجاء وهلوکي کومه خاصه طریقه نشته،بس دومره
خیال ساتئ چې نجاست شاوخواخپورنشی ،بدن به پاک شی ،داغه رنګه
په لوټه استنجاء وهلو وروسته په اوبواستنجاء وهل سنت دي ،خوکه
نجاست خورشی نوداسی وخت په اوبوپریمنځل واجب دی ،بیله
پریمنځلو لمونځ نه صحیح کیږي. (بهشتی زیور ص۸ج۲،امدادالفتاوی ص۱۳۹ج۱)

مسئله:په لوټه او نورو استنجاء وهل صحیح دی او طاق شمیر سنت دی اود دریو شمیر مستحب دی. (درمختار ص۵۶ج۱)

مسئله:دغټواو کوچنیو بولو یا استنجاء وهلو په دوران په ژبه کلمه یا کوم بل ایت یا حدیث لوستل مکروه دی.(نمازمسنون ص۹۶)

مسئله:تر استنجاء وهلو وروسته لاسونه په صابون او نورو پاکول پکار دی ،کنه په خاورو دی ومښي پاک دی کړي .(نمازمسنون ص۹۷،ابوداؤد ص۷ج۱)

مسئله: په باد پریکیدو یوائي اودس ماتیږي استنجاء وهل صحیح نه دی یعنی په اوبو مینځلو ته اړتیا نشته ،ځوکه دهوا وتلو سره نجاست وتلی وی نو استنجاء دی ووهله شی .
(آپ کی مسائل ص۸۳ج۳،ص۸۴ج۳،فتاوی دارالعلوم ص۱۴۶ج۱، د ردالمحتار ص۷۹ج۱په حواله)

مسئله: داسی لاکټ (امیل) چې وربانذی د الله لفظ لیکلی وی وبیت الخلاء ته ترتلو مخکې دی وباسی .

مسئله:که دکوم چا بیت الخلاء ته ورتلو مخکی دعاء ویل هیرشی اودننه ورپیاد شي نوپه خوله دی نه وائي بلکه په زړه زړه کي دی ولولي

مسئله:په بیت الخلاء کي ترپښي ایښودلو مخکی او په ځنګل کي دی ترپرتاګه خلاصولو مخکې دعاء وویله شي .(آپ کی مسائل ص۸۱ج۳)

مسئله:داستنجاء په پاتي شویو اوبو اودس کول صحیح دی او د اودس په پاتی شویو اوبو استنجاء وهل هم صحیح دی خونه وهل غوره دی .
(بهشتی زیور ص۹ج۲ ،فتاوی رشیدیه ص۲۸۳)

مسئله:تر اودس کولو وروسته ورپه یاد شو چې په اوبو استنجاء وهل دی (په لوټه خو استنجاء مخکی وهلی وه ) په اوبو ترپاکولو وروسته غوره دا دی چې بیا اودس وکړي ترڅو له اختلافه ووزي.
(فتاوی دارالعلوم ص۱۴۲ج۱،د ردالمحتار ص۱۳۶ج۱په حواله)



مسئله: که له اوبو پرته یوائي په لوټه استنجاء ووهی اولمونځ وکړي نولمونځ صحیح شو (کله چې شاوخوا نجاست خورشوی نه وي.
(فتاوی دارالعلوم ص۳۸۲ج۱،درد المحتار ص۳۲۴ج۱کتاب الصلوة په حواله)

مسئله:دمتیازو او غولو کولو پرمهال خبری کول مکروه دی ،داغه رنګه په دغو وختونو کي دی د الله جل جلاله ذکرهم نه کوي ،او که پرچ ورشی نو په دغه وخت کي دی الحمد لله هم په ژبه نه وائي او نه دی یرحمک الله په خوله وائي ،نه دی دسلام ځواب ورکوی.

مسئله: بیله اړتیادی وشرمګاه یاغټواو کوچنیو بولو ته نه ګوري او هلته دی بې له اړتیانه توکي نه دی پوزه پاکوي اونه دی غاړی تازه کوی اونه دی راسته او چپه طرفته ګوري اونه دی په خپل بدن لوبې کوی،اونه دی اسمان ته سرپورته کوي اونه دی پرغټواو کوچنیو بولو بې ضرورته ترډیره وخته کښینی ځکه له دې څخه بواسیر اوځګردردپیدا کیږي ،په داسی ځای کی دی جامی پوره خوندي کوي ،چې ککړې نشي ،نه په نجاست او نه په کارول شویو اوبو.

مسئله: په لوخ سر استنجاء مه وهئ ځکه دادب خلاف ده .

مسئله:داستنجاء لپاره چې وناستې ته نژدې شئ بیا ستر خلاص کړئ ،په ولاړه ولاړه ځان مه لوڅوئ ،اودواړې پښې پراخې کړئ بیا کښینئ ،او پر کینه پښه زور و کړئ او کاږه شئ ،له غټوا وړوبولو چې فارغ شئ دعا ولولئ .(کشف الاسرار ص۹۹ج۳)

مسئله:کوم غړی چې پریمنځل کیږي دهغه دپریمنځلو سره ،سره لاس هم پاکیږي تردې وروسته بیا ولاس پریمنځلوته اړتیا نشته (که پریمنځل شی نو څه پروانه لري) کوم غړی چې منځئ هغه که داستنجاء

ځای وی یاکوم بل ځای وی ،اوپه طهارت (پاکی) کي له لاسه بدبوی لري کول اوله مخرجه دنجاست ليري کول شرط دی ،پرته له هغه صورته چي سړی دهغه له ليري کولو عاجزوی. (کشف الاسرارص۱۰۹ج۳)

اللهم اجعله خالصاً لوجهک الکريم وتقبل منا انک انت السميع العليم

محمدرفعت قاسمی

خادم التدريس دارالعلوم ديوبند يوپي (انډيا)

درجب لومړی ۱۴۲۸هـج مطابق ۲نومبر۱۹۹۷ع

دعاء غوښتونکی محمدابراهيم «خليل»

دژباړي پای ته رسيدونيټه ۳ربيع الثانی ۱۴۲۹هـج مطابق ۱۱اپريل ۲۰۰۸ع

دجمعې مبارکي ورځ

اللهم اختم لنا بالخير والسعادة والبشارة والايمان

ابوخالدمحمدعبدالاحد «مجروح»